بسم الله الرحمن الرحيم ط




د کتاب ځانګړني:

- **د کتاب نوم :: راتلونکې داسلام ده**
- **لیکوال :: شهید حافظ سید قطب «رح»**
- **پښتو ژباړه :: استاد نوراحمد قرآن مل**
- **خپرندوی :: غریبک کتابتون «کندهار»**
- **چاپي لګښت :: محمدآصف صابر**
- **وړیا ویشل کیږي**

---

- **چاپ شمیر :: ۱۰۰۰ ټوکه**
- **د پښتو ژباړي کال :: ۱۳۸۸ل**
- **د چاپ کال :: ۱۴۰۰ل**

# اهدا

هغو درنو ته،چې ترمادیت معنویت ته ترجیح ورکوي.

په درنښت

ژباړن

# لیک لړ

## سریزه

الحمدللـه والصـلوة والسـلام علـی رسـول اللـه وعلـی اله واصحابه ومن والاه.

راتلونکې داسلام ده

دغـه عظیمـه مقولـه داسـلامي امـت دسـتر نابغـه او عظـیم مفکـر ، مظلـوم شهیدسـیدقطب«رحمـة اللـه علیـه» دپـاک زړه لـه تـل څخـه را وتـې ده . د ده نـه بلکـي خپلـه د اسـلام خبـره ده (ومـن یتبـع غیرالاسـلام فمـن یقبـل منـه) ځـوک، چـي لـه اسـلام نـه پرتـه د بـل دیـن او نظـام پـه لټـه کـي وي ترې وبه نه منل سي.

کېـدای سـي هـر مسـلمان دغـه خبـره تکـراره کـړي، چـي«راتلـونکې داسـلام ده» ،خـو د شـهید سـید قطـب خبـره ځانتـه خبـره ده . سـید قطـب پـه رښـتنې معنـی اسـلام پېژنـدلی دی، پـه رښـتني معنـی یـې د اسـلام لـه پـاره ژونـد کاوه او په رشتیا سره یې د اسلام له پاره ژوند قربان کړ.

د هغـه پـه تـن، زړه، هـډونو، غوښـو، وینـو او رګونـو کـي اسـلام ځـای پرځـای سـوی وو. هغـه د نـورو دینونـو او نظـامونو فسـاد ارزول او د اسـلام ،صـداقت او ثبـات داسـي لیـده لکـه د

مـازيگر سـيورئ، چـي د شـپې لـه تيـارې وروسـته ورپسـي روڼ سپيده داغ را روان وي.

نـن سـبا دنـړۍ د بدلېـدونكي حـالاتو دغـه خبـره ده چـي «راتلـونكې داسـلام ده» ښـه روښـانه كـوي . ستاسـو تـر مـخ دغـه كتــاب د قــدرمن مفكــر شــهيد ســيدقطب«رح» د هغــه كتـاب ژبـاړه ده، چـي«راتلـونكې داسـلام ده» المسـتقبل لهـذا ديـن ترعنـوان لانـدي ليكـل~ او پـه اسـلامي فكـر مـين او د اســلامي دعــوت او حركــت مخلــص او خــدمتگار ځــوان ښاغلی«استاد نوراحمد قرآن مل» په خوږه ژبه ژباړلی دی.

دا كتـاب ډېـره گټـور او ډېـر اروښـت نـاكـه اثـر دی، د اسـلام ، يهوديـت او مسـيحيت پـه هكلـه پكښـي د ژونـديو تجربو په احوال قناعت بخښونكی څېړني دي .

د ښـاغلي قـرآن مـل دغـه هڅـه ډېـره قـدر منـه ده، اللـه پاک دي په دنيا او اخرت د واړو ورته نيكه بدله وركړي.

هيلـه ده ځوانـان يـې پـه مينـه ولـولي، خپلـه وركـه پـه كښـي مونـده كـړي او مـلا وتـړي پـه اسـلامي دعـوت او خـدمت سره راتلونک د اسلام كړي.

په درنښت

پوهنمل فيض الله قاضي زاده

دكندهار پوهنتون دمحصلانو چارو مرستيال

## د ژباړن خبري

بِسْـــمِ اللَّـــهِ الـــرَّحْمَنِ الـــرَّحِيمِ (١)الْحَمْـــدُ لِلَّـــهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ (٢)الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ (٣)مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ (٤)

درنو لوستونکو!

خــوښ یــم، چــي پښــتوژبي تــه دا ژبــاړل ســوئ اثــر تاسـي درنـو تـه خپـل د مینـي هغـه تحفـه وړانـدي کـوم، چـي تـر مـنځ مـو د عقیـدتي اساسـاتو پیوندونـه او تړاوونـه پیـاوړي کـوي. پـه کـوم ډول، چـي اسـلام پـر مـوږ حـق لـري، ښـاغلی هغه مو تر اوسه نـه وي پـوره کـړی، ولـي امیـد لـرو، چـي د خپلـو ناچیزو کړنو نښي مـو هـم یـو وخـت ددې جوګـه سـي، چـي اللـه ﷻ پاک مو دغفران په پوښ کي ونغاړي.

اســلام یــو معمــولي شــعارنه دی، چــي د څوتــودو احساسـاتو پـه بدرګـه د هـوا دڅپـو پـه څپـر د څـو شـېبو لـه پـاره انســان د ژوندپــه مفهــوم پــوه کــړي، بلکــي دا یــوه معنــوی ګروهه ده، چـي پوراینـه یـې پـه عملـي اجرااتـو سـره پـوره کېـږي ،ځکـه نـو هـر مـومن مؤحـد تـه پکـار ده، چـي د اللـه ﷻ لـه لـوري د فرضــي اساســاتو اداینــه ســره ځــان عامــل مســلمان ثابت او د اړتیـا پـر مهـال د زمـاني بُعـدونواو زمـاني قیـدونو پـه لـړ کي پر ځان پـه داسـي شـکل پلـي کـړي، چـي پـه تـر سـره کېـدو

سره يوازي دلوى او متعال څښتن ﷻ رضا پکښې وي.کله چې د اسلام په اساساتوکي يو څوک ځير او د هغو په عملي کولو سره ځان ديوه قيد چوکاټ ته ور اچوي . دلته انسان پخپله ويوه انظباط او اداري چوکاټ ته ور لوېږي اوکله چې نومورې دې اداري چوکاټ ته ور ولوېد، پخپله همدا شخص دخپل ژوندانه د انسجام دپاره د خپلو مکافاتو لرليد پخپل ذهن او تصور کې ټاکي، چې په عاميانه اصطلاح کې ور ته ليرليد وايي او په اداري معاصرو اساساتوکي د راتلونکي په اړوند دې تصور تهvision وايي، چې د يوه انساني را تلونکي تصور د اټکل دعينيت اونومورې تصورته په حقيقت د اووښتو په دود اللهﷻ پخپل مقدس کتاب کې اطمنان ور کوي.

د همدې موضوع په اړوند دخپل وخت نابغه او د اسلامي نړۍ پياوړي سياسي مفکر او ديني عالم قرآني حافظ شهيد سيد قطب(رح)مسلمانانو ته ديوه لرليد ور کولو په موخه خپل دا اثر د خپل مغز په خوندور محصول د الله ﷻ د مقدسو ارشاداتو او احکامو په رڼا کې د هغو کسانو له پاره وړاندي کړى، چې مادي امکاناتو او اررښتوته د معنوت په پرتله زياته تر جيح ور کوي او دوى ته دا انتباه ور کوي چې اصلي لاره دانه ده.اصلي لاره

د انسانيت لـه پـاره د معنويـت د مفـاهمو پېژنـدل دي نومـوړي پـه دې کتـاب کـې پـه يـوه اړخ کـې يوپـه بـل پسـې داسـماني دينونـو دنـزول او پروخـت د زمـاني تغيراتـو پـه لـړ کـي د هـر زاړه ديـن تفکيـک لـه زړو اساسـاتو سـره د هغـه فسـوخ او د هـر نوي ديـن راتـګ د تـرويج اوپـه توحيـدي مفکـوره کـې دهـر ديـن يـــو شـــانته والـــى توجـــه کـــړى دى. ددې ترڅنـــګ ديـــاغي انسـانانو هغـه بـې منطقـه اسـتدلالونه، چـې داسـماني دينونـو پـه وړانـدي دبـاطلو نظريـو پـه ورکولـو سـره رسـوا او را سـپړلي دي.

ددې مسـايلو پـه لوسـتنه سـره بايـد مؤحـدين تـل لـه ځانـه دخپلـي عقيـدې د سـاتني او پلـي کېـدني پـه درشـل کـې هوښـيار واوسـي، ځکـه نـو اړ تيـا ددې سـته بايـد ټـول معلومـات لـه ځانـه سـره جـذب او کسـب کـړي. مـا ژبـاړن هـم ځانتـه د اجرائـت نـه ور کـاوه، چـې هغـه ابتکـار پـه دې لاره کـې وښـيم کـوم چـې سـيد صـاحب پخپـل دې اثـر کـې را څرګنـد کـړى، ولـي دا اسـلامي ديـن دى چـې بايـد پـړاو پـر پـړاو يـې لـه يـوه وبـل تـه ورسـوو. دې تـه اړ سـوم چـې دا کتـا ب ستاسـي تـر ګوتـو در ورسـوم پـه دې اميـد، چـې خپلـه عقيـدتي تنـده مـو ماته او له دعا مي هير نه کړئ.

په ادب او درنښت



## اسلام د ژوندروښانه لاره

د انساني ژوندانه طرز او د هغه سلوک یوه اعتقادي مفکوره ده، چې د کائناتو په جهان کې د هغوی ورتیا ، مقام او منزلت د یوه کره جریان په توګه ښکاره کوي،چې د عملي ژوندانه په ترسره کیدو سره ټول تنظیمات د اسلام د سپیڅلي دین د اصولو زیږنده دي، چې د اسلامي مفکورې په یاد کې نیولو سره د ژوندانه له پاره یوه ځلا لرونکې سرچینه جوړوي.

دا اسلام دی، چې د یوه اخلاقي نظام بنسټ جوړوي او د یو بن بس په نتیجه کې یې یو غالب او پیاوړئ قوت په وجود راوړي، چې د اخلاقي نظام په نفاذ او پلي کولو سره د انساني ژوندانه د تنظیم مرستیال بلل کیږي.

په اسماني سرچینو کې د یوه سیاسي نظام او د هغه د بیلابیلو ادارو ، ټولنیز نظم د هغه اساسي ارزښتونه ، اقتصادي پیاوړتیا، انسجام، د بیلابیلو فلسفو تفکیك، د حکومت چلولو سیستم، د هغه مقدرات او لوایح شامل دي پوره باور لرو، چې دا داساني ژوندانه د تر سره کیدو له پاره، د یو روان او روښان راتلونکي د جوړیدو یوازنۍ لار د اسلام دین، دهغه منل او پر ځای عملي کول دي.

د ژوندانــه دا ټــول اسـلوب پــه بشــپړ او مرتــب ډول پــه هغــو اړرښــتونو کــي شـامل دي، چــي د انســاني ژوندانــه پــه مختلفــو اړخونــو کــي انســانانو تــه د ډاډ او بــاور لار ورښــوي، ددې تــر څنــګ پــر هغــو اهـدافو راڅرخــي چــي عــالم انســانيت ورتــه اړتيـا لــري. د اسـلام ديــن يـوازي يـوه وجـداني عقيـده نـه ده، چي د ژوندانه د نورو اړخونو سره دي اړيکي ونه لري .

د ساري په ډول:

کـه مـوږ لـه خپـل ځانـه سـره يـو ګـړی دا فکـر وکـړو، چي کوم يو الهـي ديـن يـوازي يـوه وجـداني عقيـده ده، خـو بيـا هم د اسلام د ديـن لـه پـاره بـاوري و اوسـو، چـي دادين يـوازي د عبـادت يـا اللـه ﷻ تـه دبنـدګی لـه پـاره دی، چـي پـه سـرته رسـيدو يـې يـو مـؤمن پـه انفـرادي يـا ټـولنيز ډول پرځـای کـړي او پر هماغه ځای يې د سرته رسيدو وياړ په برخه سي .

دا ديــن يــوازي د يــوه نمايشــي عمــل لــه پــاره نــه دی جـوړ، بلکـي دا ديـن د دې دنيـا تـر ژوندانـه ور هـاخوا د آخـرت له پـاره هـم يـوه منظمـه لار و جنـت تـه د دخـول پـه پـار پرانيـزي د وګړنيــزو او ټــولنيزو عبــاداتو تــر څنــګ نــوري رواه لاري هــم سـته، چـي د جنـت دروازه د انسـانانو لـه پـاره پرانيزي،ولــي بيابـه هـم د هغـو لارو سـرچينې د هغـه ديـن څخـه وي، چـي د انسانيت د نېکمرغۍ له پاره را نازل سوي دي.

مـوږ تـه ښـائي دا ټکـي هـر وخـت پـه يـاد ولـرو، چـي د دې ديـــن دې تـــپ او تـــلاښ مـــوږ تـــه هـــر اړخيـــز فهـــم راکوي،کـه يـې مـوږ يـوازې يـوه وجـداني عقيـده وبولـو او د وجـداني مسـؤليت پـه رڼـا کـي يـې لاره تعقيـب کـړو او پـه دې فکـر سـو چـي د بريـاليتوب تـر درشـله مـو ورسـوي داسـي نـه ده چـي دعبـاد اتـو او انسـاني ژوندانـه لاري سـره بيلـي دي.ياپـه دې معنـي چـي دانسـاني ژوندانـه د نظـام اساسـات ، د فعلـي ژونـد ډولونـه د اسـلامي نظـام لـه اړخـو سـره بـې تعلقـه وي داسي نه ده .

د بريـاليتوب لـه پـاره انسـانانوته د جنـت زيـرئ هغـه وخـت ورکـولای سـو ، چـي کلـه مـوږ د اسـلامي شـعايرو او عبـاداتو د بيـانولو تـر څنـګ پـه معاصـره ټولنـه کـي د يـو عملـي ژوندانـه مثـال د اسـلامي قوانينـو پـه هـر اړخيـزو اړخونـو کـي رښتوني مشاهده او بيايې ټولنو ته وړاندې کړو.

دا ديـن هغـه ديـن نـه دی چـي قـولاً يـې خلـګ وايـي، خـو عملـي برنامـه ور سـره نـه وي.کيـدای سـي ډېـر خلـګ د همـدې نظريـې پيـرو و اوسـي، خـو اسـلام هيڅکلـه داسـي ديـن نسـي کېـدلای . مـوږ درك کـړې، چـي د وجـداني عقيـدې پـه چـاپير کـي دي جلـوه و ځلـوي او پـه ژوندانـه کـي د داسـي تـپ او تلاښ په لټه کي سي چي ځانته يوه واقعي بڼه ولري .

بشـــر لـــه عذابـــه ځخـــه د خلاصـــون لـــه بیلابیلـو سنجشـونو او د یـوه رښـتوني حقیقـت کوښـښ وکـړي نـه یـې دي کـړی، چـي دا خپلـه د انسـاني فطـرت او حقیقـي اسـلام منـافي بلـل کیـږي .د اسـلام سـپڅلی دیـن خپـل ځانتـه داسـي ځـانګړني او اسـلوب لـري، چـي یهودیـت او عیسـویت دواړه ورتـه عـاجز دي ، لهـذا مـوږ ویـلای سـو ، دواړه دینونـه چـي د وجـد انـي عقیـدې پـه کـړی کـي چـاپیردي چـاره نـه لـري، چـي د اسـلام دیـن دي د وجـداني عقیـدې پـه ښـکېل کـي پـه ځـان کـي مـدغم کـړي او یـا دي یـې ومنـي او د ژوندانـه دچارچوبـه ور دننـه پـه پـراخ میـدان کـي لـه خپلـو اساسـاتوځخه یـــې متـــاثرکړي او یـــا دا دینونـــه «یهودیـــت او عیســـویت» لـــه اسـلام سـره پـه غیرانتسـاخي ډول د یـوه ریښـتوني دیـن د عقیـدې ، نظریـې او عملـي برنـامې د تطبیـق ځخـه برخـوردار وي او د انســـاني ژوندانـــه دمســـتحکم نظـــام لـــه پـــاره دي اساسات ولري .

لهـذا د انسـاني ژوندانـه د سـتونزو د هوارولـو ترڅنـګ پـه عبـادتي اړخ کـي اسـلام د لمړنیـو ګـامونو د پورتـه کولـو لـه پـاره لمړنـی اساسـي دیـن «اسلام»دی، چـي دې کړنـو تـه ثابـت قدمـه پاتـه کیـږي. همدغـه قربـاني لرونکـي هدفمنـد دیـن د

خپلـو اصـولو د پلـي کولـو پـه پایلـه کـي هـر وخـت ی قـول او عمل په چوکاټ کي پیروز او کومه ماته نه مني.

## استعماري انقلاب او د اسلام دخنثی کېدو طرحه

کمـال اتـاترك د دې دیـن دلـه منځـه وړنـي لـه پـاره تـر ډېـره لـوړ ځایـه ورسـید د ترکیـې اسـلامي خلافـت، چـي پـه هغـه وخـت کـي د اسـتعمار گرانـو تـر برید لانـدي وو د هغـه د سـکولر ریفـورم پـه پایلـه کـي سـقوط سـو ، د اتـاترک مسـتبد رژیـم د همـدې اسـتکباري صـف پـه سـرکي قـرار درلـود. ترکیـه یـې د یـوغیري دینـي «سـیکولر»پیـاوړي قـدرت پـه توگـه مطرح کړه .

دیـن یـې لـه حکومـت څخـه بېـل او اروپـائي قـوانین یـې د اسـتفادې وړ و گرځـول .د اسـلام پـراخ بنسـټه دیـن یـې پـه یـوه کـړۍ کـي را ایسـار او هغـه یـې د اسـماني قانون په پرتله یو شخصي دین و باله.

پسـله هغـه قاطعانـه بریـالیتوبونو چـي کمـال اتـاترك د خپلـو کوښښـونو پـه پایلـه کـي درلـودل هغـه تـپ او تلاښـونه چـي د سـبا لـه پـاره هـم دا هڅـي د اسـلام د ریښـود بیخـه ایسـتلو لـه پـاره ثـابتي کـړې « داسـي ونـه سـول نـن درجـب طیـب اردوغـان پـه رهبـري موډرنـه ترکیـه پـه موډرنـه اسـلامي تـر

کيـه بدلـه سـوې او د اتـاترک تـرلاس لانـدي ريفـورم يـې بيرتـه خاورو خاکګاه کړئ»[1]

هغـوی پتېيلـې وه، چـي نـه يـوازي ترکيـه، بلکـي ټـول اسـلامي هيوادونـه پـه بشـپړ ډول لـه دينـي اساسـاتو خـلاص کـړي او لـه دې لاري يـې وکـولای سـول، چـي اسـلام د يـو اسماني ديـن پـه توګـه نـه ،بلکـي د عـام ذهنيـت لـه پـاره د يـوې سـاده مفکـوري پـه توګـه تثبيـت او لـه هغـه منزلتـه يـې را وغورځوي، چي الله ﷻ اساساً ورته ټاکلي دي .

هغـــــه کوښـــــښ وکـــــړ هغـــــه ارزښـــــتونه ، مفاهيم،ډسـپلين او نظـام يـې بـې ارزښـته اوګـډوډ سـي خلګـو تـه يـې عمـلاً وښـوول، چـي د اسـلام ديـن «العياذباللـه»د يـوه ربښتوني عقيدوي جريان د سقوط په نوم تيروتنه ده

ددې ټولـو هڅـو سـره چـي د اسـلام پـه وړانـدي د اتاترك هوډ وو د اسلام د ړنګيدو پرته بل څه نه وه ؟

او يـا پرتـه لـه دې، چـي د اسـلامي نهضـت د غـړو د ټکولو او وهلو لاس پوري کړي نو بل څه وه؟

تـا سـو و ګـورئ د نـړۍ پـه ګـوټ ګـوټ کـي جګړيـز ، متخاصـم او بـې رحمـه قوتونـه، چـي د اسـلامي نهضـت د

[1] دژباړن زياتونه

غـړو دټکولـو پـه لټـه کـې دي د نومـوړي اسـلامي نهضـت لـه غړو څخه دويري پرته به بل څه لري؟ چي دوی يې کوي .

هغـه نهضـت چــي د نـړۍ پـرمخ د يـوې داسـي لاري پرانيسـتل غـواړي ، چـي انسـان د رښـتونو حقـايقو پـه را لڅولـو سـره د کائنــاتو د پيژنــدني، د حقــايقو پــه وړانــدي کولــو د انسـاني ژوندانـه اساسـات پـه منظمـه او سـپېڅلي توگـه زده او پلـي کـړي سـکلرانو يـې جلـوگيري کړېـده ، ولـي پـوهيږو چـي دا ديـن يـو حقيقـت او دا کـافی ده چـي داسـلامي ديـن ريښـې دومـره ژوري تللـي، چــي داکوښښـونه او ضـربې يــې هيڅکلـه په پرې کولو نسي توانېدلای.

## دفاعي کرښه

دوی هيڅکلــه هــم د هغــه ديــن پــه تعميــل کــي حقيقـت نسـي زغملاي،چـي د انسـاني ژوندانـه لاره يـې ټـاکلې ده د اســلامي ديــن ســاتونکي او پــالونکي دې تــه متوجــه دي،چـي پـه زيـات سـرعت سـره د خطـر دا زنـگ احسـاس کـړي او د انسـاني ژوندانـه لـه پـاره د نجـات يـوه لار ولټـوي ترڅـو د اسـلامي ديـن پيـروان بيرتـه د« السـته»لـوري تـه مخـه کـړي او هغــه اسـلوب پرځــان عملــي کړي،چــي د ســپيڅلي قــرآن پــه ليکلـوکي يـې انسـان د دنيـوي او اخـروي روښـانه ژونـد پـه کولـو سره امر سوی دی .

پریشــانه زړونــه، نــاقراري خبــرې پــه ســتومانه حــال کــې د نجــات لاري تــه نجــات ورکــوونکي هڅــي کــوي ، نــارې وهي، عامه ذهنیت پیغام ته ورکوي او ورته وایي:

اې انسانانو!

بېلــه دغــه اســلامه بلــه داســي لار او دیــن پــه معاصــر وخــت کښــي نســته، چــي تاســو تــه د رفــا او خلاصــون لار درکــړي .بــل داســي دیــن نســي مشــاهده کېــدلای، چــي قــانع کوونکی منطق له ځانه سره لري .

هغــه اړتیــاوي او ارزښــتونه،چي مــوږ ددې دیــن او دې لاري څخــه د انســاني ژوندانــه د نجــات لــه پــاره بیــایي پــه رښتوني سره احساسوو.

مــوږ متیقــین یــو چــي دا یــو رښــتونی حقیقــت روښــانه راتلــونکې لــري. هغــه کړنــه اوعمــل، چــي ددې دیــن لــه پــاره یــو ښــه راتلــونکي تــاکي ، د دعــوت او بلنــي لار پرانیــزي و لوکــه دښــمن یــې هــم وي کــه وغــواړي او کــه ونــه غــواړي، چــي پــه دې ســپېڅلې لار کــي یــو لاروی ســي بیــا یــې د مشــکلاتو لــه پــاره ډېــري ښــې لاري وروښــوي او هیڅکلــه د دې لاري لــه اســلوبو څخه بلې لاري او عقیدې ته میلان نه کوي.

ددې امکــان ســته، چــي انســانیت پــه شــرق او غــرب دواړو کــي دگمراهیــو پــه لــور مخــه کــړي او د بیلابیلــو تجربــو پــه

پایله کې بې سروسامانه د بې چوپانه رمې په شان و گرځي او را وگرځي په یو نواخته ډول به سرگردان وي، موږ دا اطمنان ورکوو، چې د سرگردانۍ دا تجربې به ختمې سي او په پوره توثق سره وایو، چې اسلام پیروز او بریالی دی.

## تخیلي مسیر دحقیقت په لټه

د اسلام د رښتوني تثبیت له پاره همدا ټولي تجریبې په یوه سرناخلاصه دایره کې ځای پر ځای راڅرخي او ځانته د وتلو بله لاره نه لري ،بېله دې چې داسلام دایرې ته دي داخل سي . د تجربو د استحصال او دوام له پاره همدا جوړه سوې دایره (کړۍ) عبارت له هغه تخیل څخه ده، چې د انساني ژوندانه او انساني تجربو څخه پایله اخلي او د ناپوهی،نفسي غوښتني او خوار ځواکۍ او انساني اړتیاوو په تر سره کیدوسره له همدې دایرې څخه ځان خلاصوي .

د تخیل پربنسټ ولاړي دغه ټولي کړني موږ ته دا تجربه را کوي، چې د یو بل حقیقت پر لوري مخه کړو او په پوره او محکم ډول بیلابیل انسان پالونکي اصول زده کړو، چې د جهالت، نیمگړتیا، خوارځواکۍ، نفسي غوښتنو په عوض یې علم، کمال ، قدرت او حکمت غوښتنه وي،

اساسي بنيادي همدا اسلامي اصول دي. دا اصول انسانان د الله ﷻ د بندګۍ او امر ورنې ودايرې ته را ښکيلوي، څو د «الله ﷻ وحده لاشريك له» لار ونيسي.

ددې پاکي او مقدسي لاري نښانې هغه ممتاز صفتونه دي، چې د ژوندانه پراسلوبو سربيره انسانان د يوه نظام په سيوري کي رهبري کوي.ټول انسانان بايد د يو معبود الله ﷻ بندګي وکړي.د دې لاري پيروان به تل د الله د لويي، پالني او حاکميت او يوازيوالی د زړه په سترګو محسوس او و مني، يوازي د الله ﷻ د يوازي والي په منلو سره به يې خيالات ، تصورات ، ارزښتونه ، نظمونه ، قوانين، ملکيتونه، اخلاق ، او اداب حاصل وي.حال دا چې په نورو غيري اسلامي نظامونو کي لا دينه خلګ د لوی الله ﷻ د بندګۍ پرته و ځانته د نورو دينونو الاهانو ، اربابانو بيلابيلي بندګۍ کوي او د يوه لاشريک الله ﷻ لار يې پريښې وي .هغوی خپل معبودان بولي خيالونه او تصورات يې هم په هغوی پوري تړلي وي . د هغوی د قوانينو او اصولو پر لوريې مخه کړې وي همدغه کسان، چې خپل اربابان پخپله جوړه وي او خپل ځانته پخپله د غلامی کړی په غاړه کوي او خپل واك د بې وسه اربابانو په واك کي ورکوي.د هغوی په بندګۍ«العياذ بالله» معتقد دي .

مـوړ تـول هغـه اصـول او قـوانين، چـي بنـده د بنـده غـلام کـوي د يـوه جاهـل نظـام پـه توگـه پيژنـو، ولوکـه د دې نظـامونو شـکلونه پـه هـر دول،هـره تولنـه پـه هـر وخـت حـاکم وي .دا نظامونـه پـر هغـو اساسـاتو ولاړ دي، چـي د تـر سـره کيـدو او بشـر تـه د خلاصـون پـه موخـه کومـه پايلـه نسـي درلودلای .

ددې مځکـي د کُـرې پـه يـوه برخـه کـي هـم بـې د اسـلام لـه نظامـه پرتـه بلـه لاره نسـته، بېلـه دې، چـي ديگانـه الوهئيـت د اللـه ﷻ تـر او امـرو لانـدي د بنـدگۍ لاره غـوره کـړي. بنـده گـان د بنـده گـانو د بنـدگۍ لـه منگولـو را وباسـي، د بنـده گـانو جـوړ کـړل سـوي شـرير عبوديـت او د بنـدگۍ شـرير ربوبيـت خـتم او د يـوه واحـد لاشـريك ذات نظـام پـر مځکه حـاکم کـوي، نـو پـردې اسـاس ويـلای سـو، چـي عبوديـت يـوازي او يـوازي پـه دې ليـدونکو او نـا ليـدونکو کائنـاتو کـي پـراخ او يـوازي د اللـه ﷻ لـه پـاره دی، چـي پخپـل ذات او صفاتو کي ساری نه لري.

. أَفَغَيْـرَ دِيـنِ اللَّـهِ يَبْغُـونَ وَلَـهُ أَسْـلَمَ مَـنْ فِـي السَّـمَاوَاتِ وَالأَرْضِ طَوْعًا وَكَرْهًا وَإِلَيْهِ يُرْجَعُونَ[2]

[2](٨٣) العمران

ژباړه:ایا بې د الله ﷻ له دینه پرته بل دین غواړی ؟ حال دا چې ټول په اسمانونو او مځکو کې دي په خوښې یا په زور یې یوازې هغه الله ته غاړه ایښې ده (اسلام یې منلی)اودته بیرته ګرځول کېږي.

یعنې دغه کافران د الله ﷻ د دین څخه پرته د نورو دینونو په دیوالونو کې را ایسار دي. حال دا چې د مځکو او اسمانونو او سپدونکي پخپله خوښه او یانه خوښه د الله ﷻ په فرمان د یوه الله ﷻ لور ته رجوع کوي.

د اسلام د مقدس دین اساسات او مقدرات د نړۍ له کوم تاریخي دوران څخه سرچینه نه اخلي، دا نظام هیڅکله د یوه محلي نظام زیږنده نه دی. دا دین په کومه ټولنه،یو نظام یا نژاد پوري اړه نلري، بلکي دا دین دائمي دین او د دایمي اصولو او مقرراتو لرونکی دی، چې الله ﷻ د انساني ژوندانه د سالمیت له پاره غوره کړی دی ترڅو د بشر پر پوره ژوندانه راوڅرخي، هغه چې د الله ﷻ خوښي پکښې نغښتې ده.

دا دین یو داسې اساسي نظام تشکیلوي، چې ټاکلي منظم تعینات په کښې ښکاره دي. الله ﷻ یې غواړي او انسان یې په پلي کولو سره د عزت، وقار، خیر رسان سړي په توګه را څرګندېږي.

## د ژوندانه اساسات پرحقیقت ولاړدي

د ژوندانــه دا اساســات چــي پــر حقیقــت ولاړ دي .اللــه ﷻ پیــداکړ ی جهـان چـي انسـان یـې پـه وړانـدي ورتـه پیــدا کــړی دی . داد انســانانوله پــاره د فطــري قوانینــو یــوه دایمــي پروســه ده چـي ښـه والـي یـې پـه تخلیـق او کائنـاتو کــي حکــم فرمــا دی، چــي د نــن او ســبا لــه پــاره بــه نــورهم حکمـران وي . انسـان چـي ددې فطـري قـانون پـه لـړ کـي پـه ځینــو مــواردو کــي د ســتونزو او کړاوونــو ســره لاس او گریــوان دی، لـه همـدې قـانون څخـه دي خپلـه د انسـان سـرغړوني او ســرپیچې دي. لکــه څــه ډول چــي ښــایي پــه هماغــه ډول یې د جهان د فطري قانون تابعداري نه ده کړې .

انســانان بایــد د دې فطــري قــانون ټــول مــواد پــر وخــت او زمــان پــر خپــل ځــان تطبیــق کــړي، یعنــي د یــو مسلمان پـه توگـه بایـد د اللـه ﷻ پـر مځکـه اللـه ﷻ د بنـدگۍ لاره ځانتــه غــوره کــړي. تــر څــو ټــول هغــه جــوړ کــړل ســوي موازن، چي د دې فطـري قـانون پـه لـړ کـي قـرار لـري پلـي سـي . ددې پلــي کېــدو لــه پــاره د انســان عیارتیــا او ســاتنه یــوه حتمـي خبـره ده، هغـه انسـانان چـي لاره یـې ورکـه کـړې همـدا اسلام ښه بشارت ورکوي.

زمـوږ دیـن قطعـاً لـه جاهلیـت سـره اړیکـې نـه لـري . د همـدې جهالـت د ریښـو د ایسـتلو لـه پـاره همـدې اسـماني قـانون اساسـات جـوړ کـړي دي یـوازېې ددې لـه پـاره، چــې انســان د واحــد او لا شــریك ذات بنــدګي وکــړي ،نــو یــې د انسـانانو لـه پـاره د فطـري قـانون پـه رڼـا کـې د اسـلام د مقـدس دین تګلاره غوره کړه .

ټولــو هغــو خلګــو چــې د اللــهﷻ د دیــن پــه وړانـدې یـې د مقـاطعې اعـلان کـړئ، بایـد اسـلام پـر ځـان د یــوه حــاکم حکــم پــه توګــه ومنــي . د طبیعــت لــه قوانینــو او د هغـوی د فطرتـي جوړښـت سـره سـم ځانونـه جـوړ کـړي دا بایـد درك کـړي، چـې د طبیعـت ضـد قـوانین، د فطـرت ضـد قـوانین او بلآخـره پخپلـه لـه فطرتـه سـره سـر نـه خـوري، د دې تصــادم او ټکــر پــایلې ښــایي ډېــري خطرنــاکې وي، چــې انسانان به یې پخپله ووینې .

مــوږ تــه دا حقیقــت ډاډ راکــوي، چــې کــه خلــګ پــه اسـاني سـره د اللـهﷻ و لورتـه مخـه کـړي ښېلـه شـکه او ښېلـه فریبـه دغـه دیـن پـه راتلـونکي کـې د انسـانانو لـه پـاره دیـوه سـر لوړي را تلونکي نظام دوامداره نتیجه ورکوي .

مـوږ یقیـن لـرو اسـلام هغـه دیـن دی، چـې پـه کـره ډول د انسـاني ژوندانـه اساسـاتو تـه یـو واقعـي رنـګ ورکـوي او

پــه عملــي کولــو ســره  يــې  انســان تــه د ټولــو ريښــتنو شــئوناتو ضــمانت کــوي .ټــول  کوښښــونه،ددې لاري د مخنيــوي لــه پــاره پرکــار وړل کيــږي او د دې تګــلاري پيــروان د انحــراف  پــر لــور ورسموي ،لــه مــاتي ســره يــې مخــامخ کــوي او فرصــت نــه ورکــوي چـــي د صـــليب پروســـې دي برلاســـي ســـي، ځکـــه نـــو انســـانان بايد ددې دين په عملي کولو سره بې تفاوته پاته نسي .

## هردين دژوندانه يونظم دی

تصــوري باورونــه او  ټــولنيز نظــام لــه ديــن ســره پراخــي اړيکــي لــري، چــي  د دې  اړيکــو پــه لــړ کــي  د نــوري  پراختيــا، پرمختــګ  او لــوړوالی پــه تــر ســره کيــدو ســره يــو بــديل ټــولنيز نظــام رامنځتــه کــوي.د دا ټــولنيز نظــام لــه پــاره ټــول عقيــدتي بنسـتټوته يـو سرمشـق دی . د اسـلام  ټولنيزنظـام د يـو  ايښـوول ســوي نهــال پــه توګــه طبعــي  وده کــوي ،چــي بــاوري يــې د کائناتو او په کائناتو کي د بشر نقش ثابتوي.

د دې ثبــوت لـــه پـــاره هغـــه غايـــه او هـــدف تشـــريح کيـــږي، چـــي پـــه ټـــوليز ډول ټـــولنيز نظـــام پکښـــي را منځتـــه کيـــږي.د ټـــولنيز نظـــام پـــه لړکـــي د افکـــارو اشـــتقاق«ټوټـــه کېدنــه»پــه کُلــي ډول طبقــاتي بنســټونه دي، چــي پــه پــوره او صـــحيح ډول    د اجتمـــاعې نظـــام  دجوړيـــدلو اصـــل او پـــه اســلامي نظــام کــي توضــيحات روښــانه کــوي.  د ا توضــيحات

د دین او دنیا لاره ده   له دې پرته هیڅ یو نظام داسي نه دی، چي په طبعي ډول دي نش او نما وکړي او په سالم ډول دي پر خپل ځای پایښت ولري، مګر، چي د اسلام د افکارو او اندیښنو تمرین پکښي نه وي ممکنه نه ده.

په حقیقت کي کائنات ، انساني حقیقت او د انسان مقام په ټولنیز نظام کي ټاکي اوانسان ته دچارو واګي په لاس ورکوي، چي دالله پر ځمکه دالله‌ﷻ خلیفه وي او د انساني چاپیریال ، غرض او غایه ښکاره کړي . د اسلام له اړخه انسان د هغو حقوقو حقداردی ، چي د هغوی د علت او برکته څخه ورته اړتیا لري، حقداري کړني انساني جهان ته د طرز او سلوك لاره پرانیزي .د دې سره انسانان له انسانانو او نورو ملحقاتو سره د ارتباط منطقي اړیکي موښلوي، چي په مختلفو ډولونو کي د ټولنیز نظام تعبیر ورڅخه اخلو.

هر هغه نظام، چي د دې ډول اسماني مفکورو ،نظریو او کړنو څخه خالي وي په احترام او تعمیل ورته قائل نه یو، دا ډول نظام په تجرید کي پاته یو بې هدفه او غیر ټولنیزنظام دی، چي د انسانانو له پاره ګمراه کوونکی دی. له اسلامي بنسټونو پرته نظام ، به داسي نظام وي، چي هیڅکله به بشر ته یو دایمي امید او هیله ورنه کړي ،نو

په لنډ ډول له تیر خبرو څخه په مفهوم اخیستنه سره برعکس نظام به هغه وي، چې د یوه نظام داسي ځای پر ځای سوي نظام تسریح ولري، چې ترسایه لاندي یې انساني حرکت، کائناتي حرکت، انساني فطرت د هغوی د ریښتونو اړتیاوو پر بنسټ سره هم ږغی وي.

هر کله چي د نه همږغی نظام وي، نو ویلاي سو، چي د غیر ټولنیزنظامونو په تعقیب هیڅ کله انسان د بدبختی او بدمرغی له سریښ ناك کاشین« مصیبتونو ، بدمرغیتو، او خوارځواکیو»څخه ځان نسي ژغورلاي.له اسماني عقیدتي بنسټونو څخه خالي نظامونه که هرڅومره په مادي اړخ کي راز رازسهولتونه او اسانتیاوي را منځ ته کړي،بیا هم همدا مادي سهولتونه یو له بله سره متناقض وي، چي د نوښت او استهلاك په صورت کي پایښت نه لري، همدغه تناقض د انسانیت د ټولنیز ژوندانه د نه اکمال او ګډوډی لامل کېږي.

## د عقیدتي او مادي نظام تفکیک

په ټولنیز نظام کي د اعتقادي باورونو موجودیت او له فردي طبقاتو سره د هغوی اړیکي د باوري اندېښنو څرګندوني ، شنني او تشریحات ورکوي او په هره رشته کي د عقیدتي نورمونو او ټولنیزو نظامونو اړیکي صورت

نیسي. دا یوه حتمي خبره ده، چې دا ډول اړیکي نه یوازي په یوه محیط یا سیمه پوري تړاو پیدا کوي،بلکې« فکری نړۍ والتوب یا Ideological socialism »[۳]را منځته کوي، چې ډیري ټولني په بر کي نیسي ، افکار ، انساني اساسات ، اخلاق ، عبادات اود ژوندانه نور شعایر ورښوي او په دې سره انسان د مځکي پر مخ د الله ﷻ بندګۍ ته را بولي.دا حقیقتونه باید په نورو عبارتونو کي داسي بیان کړو، چې دین د یوې مفکورې پر اساس د یوه اعتقاد او اندیښې په ترڅ کي د ژوند ی نظام فکري او عملي برخه ده. یوازي د انساني ژوندانه له پاره نظریې نه تولیدوي، بلکې ور سره جوخت داسي نظام منځته راوړي، چې فعالیتونه او سرګرمیاني یې دیوې واحدي ستراتیژۍ غوندي د مځکي پر مخ صورت نیسی.

ددې نسخو عکس نور هم پوره دی . که ووایم، چې ژوند په حقیقت کي دین دی او دین د یوې انساني ټولني عقیده ده، نو دابه تېروتنه نه وي سوې . همدا دیني

---

[۳] په دې موضوع کي دا توپیر ضروریدی چې باید پوه سو. یو اسلامي عقیدتي پیوند دي چې دتوحید دکلمې ټول پیروان دیوې عقیدې تر چتر لاندي ژوند کوي ،چې فکري سوسیالیزم یا فکري اشتراکیت ورته وایو، ولي بل مادي سوسیالیزم دی، چې کوم فکري اړخ نه لري ددې سوسالیزم موډرن نوم کمونیزم دی چې تقریباً په موجوده نړۍ کي یې سیاسي ماته په فکري لحاظ داسلام په وړاندي او په مادي لحاظ دغربي کپیټلیزم په وړاندي خوړلې ده .ژباړن

ګروه یا عقیده ژوند منظموي .دا نظام د الله ﷻ لخوا جوړ دی ؛بیله شکه د رباني ارشاداتو څخه استنباط کوي.دا ډول نظام، چې له الهي اموراتو سرچینه اخلي او په هغوکي عملاً اجراات کوي. دا ډول نظام یا حزب د الله ﷻ د دین برخه شمیرل کیږي .

که چیري د الهي ارشاداتو پرته کومه ډله ، ګوند ، نظام یا ټولنه او دهغې اساسات د یوه امیر، پاچا یا رئیس دچاپیریالي فکر زیږنده وي .موږ یې الهي دین نسو بللای ،بلکي هغه د یوه انساني فکري محصول او یا ناقص نظام بولو او د دین په توګه یې نه منو. په دا ډول نظامونو کي نه متدین کسان د اسلامي نظام پراساساتو ولاړ ژوند رابخښي او نه دیوه الله ﷻ بندګي .

د فلسفې،اجتماعیاتو، مذهبونو او نظریاتو څښتنان ددې حقیقت له څرګندولو او توضیح کولو څخه په ویره کي دي، چې دین پخپله یوټولنیزنظام دي که دا حاکم سي، نو دده ټول منافع په خطر کي دي، دوی اصلاً غواړي. خپله عقیده لمړی پر عوامو او ساده لوحه انسانانو وتپې او وروسته ددې عقایدو په پایله کي هوس غوښتونکي انسانان د الله ﷻ د نظام په عوض د قومیت ، نژاد پالني ، منطقه پرستی ، ښکلا پالني پر چوکیو کښېنوي، ګډون او

اشــتراکیت یــوازې د یــوه نظــام نــوم نــه دی . ،بلکــې دا یــوه عقیـدتي مفکـوره ده، چـې پـه اساسـي توگـه مادیـاتو تـه توجـه کـوي او پـه مـادي جهـان کـې کـوم تناقضـات، چـې موجـود دي را منځتـه کـوي، چـې دا ټـولي کړنـې پـه پایلـه کـې بدلونونـه او انقلابونــه را منځتــه کــوي، چــې پــه اوســنیو شــرایطو کــې د نظامونو او ولسونو تر منځ لوی خلیج پـه وجود راوړئ دی .

## د خدای د دین او وضعي قوانینو توپیر

همــدا حقیقــت دی، چــې مــوږ د اللــه ﷻ د دیــن ترچتـر لانـدې پـه نظـام کـې کومـه سـتونزه نـه احساسـوو . کـه د الهـي دیـن فرمـانروائي او د هغـه پـه لـړ کـې د انسـاني ژوندانـه د ښـه تېرېـدو پـه نیـت الهـي نظـام پـه سـاده او بسـیط ډول یـو ربښــتوني حقیقــت وبولــو او د هغــه پیــروي وکــړو نــو د ټــول انسانیت لـه پـاره بـه بلـه داسـې لار او دیـن پاتـه نسـي، چـې پـه عقیــدوي او وجــداني ډول دې د منـنــې او پلــې کولــو وړ وي د اســلام دیــن یــوازې یــو څــو شــعارونه نــه دي او نــه د یــو څــو عبـادتونو مجموعـه ده، چـې پیـروان دې یـې پـه انفـرادي او یـا ټـولنیز ډول عملــې کــړي . نــه د یــو چــا د شخصــي احوالونــوم دی، چـې د یـوه نفـر د جـوړ کـړل سـوي شـریعت دي تـابع وي دا دیــن پــه ژوندانــه کــې د شــریعت حکــم او د یــوې اساســي ســرچینې څخــه نافــذیږي،نو کلــه کیــداي، چــې دا دیــن دې د

الله ﷻ له ارشاداتو پرته له بل شي مور ته وښوي انسانان د دين دعبارت په مفهوم ترهغه وخته نه پوهيږي، چي د الله ﷻ د دين او د بندګانو په ذهن کي دځو بندګي نظريو او شعارونو ترمنځ يې توپير نه وي سوئ.

هغه څه چي د شخصي وجدان په چاپير کي را ايسار وي او يا د يوه شخص د نيمګړي فکر محصول وي او يا هم د بندګۍ دشرعيت تابع وي، چي د انساني ژوندانه د ټولو اړخونو تپ او تلاښ ته لاس رسی نسي کولای، نو څنګه به يې توپير وکړي؟

کله چي څوک د ژوندانه د ټولو حرکاتو په تپ او تلاښ کي نه وي ، د ژوندانه د ټولو چارو رهبري په خپل لاس کي ونه لري او د همدې رهبرۍ له پاره عملي برنامه تطبيق نه کړي ،نو څنګه به د ژوندانه په مختلفو اړيکو کي اخلاق ، مفکوره او احساسات ښکاره کړي؟.

نه داسي نه ده دا ډول دينونه د الله ﷻ له لوري نه دي را نازل سوي، چي وای يوازي دي د آخرت د پيروزۍ له پاره و کارول سي او په دې دنيا کي خلګ يوازي په داسي چارو وګماري چي بشر ته سوکالي ورنه کړي.

دا له خندا پرته به بل څه نه وي دا ډول غوښتني له ځانه نفس غوښتونکي جوړ کړي او د الله ﷻ د جوړ

کړل سوي نظام په پرتله د خپلو اربابانو د جوړو سوو دينونو ته ترجيح ورکوي. دا ډول فکرونه د خندا وړ دي، دا دبندګۍ د مغزلوبه اومسخره ده . کاشکي دې خلګو، د خپلو او يا نورو بندګانو د فکرونو د توليد سوو قوانينو په عوض خپل نفس د اسلام د ريښتينو حقيقتونو له زاويې څخه د يوه ښه رهنما په توګه د ژوندانه د لارو چارو له پاره لاره لټولای، انساني شخصيت پخپله د فطرت او طبيعت په اعتبار يو وحدت دی. هغه وحدت چي د ژوندانه په لړ کي يو ټاکلی نظام تر سره کوي .

## د ژوندانه د ماشين چلښت

کله چي يو وحدت يا سيستم د ژوندانه لاري چاري د يوه ټاکلي نظام له مخي تنظيموي او د انسان او ژوندانه ترمنځ يوه منطقي همږغي را منځته کوي نسي توانيدلای ،مګر هغه وخت، چي د يو ذات بندګي وکړي او الهي نظام په رڼا کي خپل د ژوندانه چاري سمبال کړي .

که چيري يو ضمير اويو وجدان د يوه نظم او انضباط تر چتر لاندي وي او د ژوندانه حقيقتونه او فعاليتونه د بل نظم تر اغېزې لاندي وي همدغه دواړي کړني پخپله د دوو بيلو بيلو مفکورو څخه اغېزمن کيږي . د اختلاف په لړ کي پراختيامومي، په يواړخ کي هغه چي

انسـان د انسـاني اندیښـنو او پـه بـل اړخ کـې د الهـي اموراتـو پیـــرو وي .همـــدا انســـان پخپلـــه دتضـــاد،اتفاق Schizophrenia دلومـو ښـکار گرځـي لـه بلـه اړخـه د عقیـدتي حقـایقو او تـر هغـه وروسـته د ژوندانـه پـه نـورو غوښـتنو کـې منـافق غونـدي او لـه نـوي سـرگرداني وضـعي سـره مـخ سـي، څـه ډول چـې پـه ارواحـي ډول یـې مـوږ پـه اروپـا او غربـي هیوادونـو کـې نښـي نښـانې احساسـوو . پـر نیمـه وجـداني اصـولود ولاړ د ذهنیـت څـرک تـر سـترگو کېـږي او ددې سـره بـل اړخ یـې لـه انسـانیت سـره پـر بـې علاقـه گـې ولاړي دی، چـې انسـاني ارزښـتونو تـه کومـه تـرجیح نـه ورکـوي . دا ډول افتـراق ، رخشـند وهلـو نـاوړه بېلتـون د دیـن او دنیـا تـر مـنځ پـه نښـه کـوي، چـې اوس یـې هـم پـه ډېـرو انسـاني ټولنـو کـې صـورت نیـولی دی، چـې علتونـه یـې درښـتوني عیسـویت نـه ،بلکـې د بنـدگانو لخـوا پـه وضـع سـوي عیسـویت کې ښکاري.

دا یــوازې د الهــي دیــن تگــلاره ده، چــې د کائنـاتو علاقـه د هغـوی لـه خـالق ﷻ سـره سـاتي او د انسـانیت د مقـام سـرچینه پـه کائنـاتو کـې ثـابتوي پـه پـوره ډول د انسـاني وجـود غایـه پلـي کـوي دا ښـکاره کیـږي چـې د همـدې ډول اړیکو ثبوت همدا اسلام دی .

هغــه اړيکـــي چـــي د انســـانيت د مرتبـــې ډول او ځـای د رښـتينو حقيقتونـو سـره پـه لاس راکـوي، اسـاس او منشـايې لـه سره څخـه جوړښـت اومـنظم والـي وربخښـي او لـه همـدې املـه د خپلـو حقوقوپـه لاسـته راوړنـه سـره داسـي تـوکي او وسـائل پـه وجـود راوړي، چـي بـې د خپلـو حقوقـو تـر څنـګ د نـورو حقـوق هـم پيژنـي چـي پـه دې سـره د خپـل هـدف تـر پـړاوو ځانونـه رسـوي او د اللـه ﷻ رضـاتر لاسـه کـوي د دنيا او آخرت چاري په نيکمرغه کيږي.

همـدا خبـره ده چـي ؛ هـر ديـن چـي د اللـهﷻ لـه لـوري را ليـږل سـوي وي ، د هغــې عقيـدې اومفکـوري اسـاس او اعتقـاد و انسـاناتو تـه ورکـوي، چـي د وجـداني ژوندانـه نظـام او د عملي ژوندانه نظام ترمنځ پيوستون موجود وي.

د اللـه ﷻ دينونـه د دې لـه پـاره انسـانانو تـه راغلـي چـــي انســـانيت د اللـــه ﷻ و لورتـــه راوبـــولي او د ژوندانـــه د چـارو لـه پـاره د يـوه مـنظم ژوندانـه پـر لـوري ګامونـه واخلـي .هغـه چـي اللـه ﷻ ورتـه تـاکلي وي. ترڅـو د بشـر او د هغـه د ضـميرترمنځ پـر حقـايقو تمرکـز، وجـدان ، عمـل ، فرهنـګ او د فطرت د قوانينو تر منځ هماهنګي را ولي.

## اسماني دينونه درخشند له پاره نه دي نازل سوي

هـر ديـن چـي د اللـه ﷻ لـه لـوري را نـازل سـوي دی،ددې لـه پـاره دی چـي پرخپـل وخـت او زمـان د مځکـي پـر مـخ پلـی سـي او انسـانان پخپلـو اعمـالو او افعـالو کـي د اللـه ﷻ د اللهيـت تـابع سـي . نـه ددې لـه پـاره، چـي د انسـانانو پـه فکرونـو کـي پـه شـعوري ډول موجـود وي . د مغـز پـه يـوه کـنج کـي يـې ځـای نيـولي وي، خـو د عمـل پـه ډگـر کـي يـې هـيڅ نـه وي پـه اخلاقـي او سـلوکي ډول د روح پـه افسـردگۍ اختـه او کومـه عملـي برنامـه نـه لري،خـو پـه محـراب او ممبرکـي يـې خپـروي اوخلـگ يـې لـه فرامينـو خبـروي او د همـدې انسـانانو ژوند په يکنواخته او شخصي انحصار کي را گيروي .

اللهﷻ پخپل کلام قران کريم کي فرمائي.

وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ رَسُولٍ إِلا لِيُطَاعَ بِإِذْنِ اللَّهِ [٤]

ژبـاړه :مـوږ هـيڅ يـو رسـول نـه دی لېږلـی ،خـو د دې لـه پـاره چـي د اللـه ﷻ د اذن پربنسـټ لـه ده څخـه اطاعـت وسي .

تـورات هـم مخکـي را نـازل سـو، چـي پـه هغـه کـي ډېـري زيـاتي د ژونـد او عقيـدې لار ښـووني نغښـتي وې،ولـي د هغـه کتـاب امرمنـونکي بيرتـه ياغيـان سـول او عملـي برنـامې

[٤](٦٤) النساء

ته یې غاړه نه کښېښووله، یوازي یې پر وعظ او نصیحت اتکاء وکړه سره تردې، چې الله ﷻ دوی ته امرکړی وو،چې یوازي ځانته د وعظ اونصیحت لاره غوره نه کړي .

داکیفیت المانی عالم «فراسینو»پخپل نظرکي داسي څرګندوي: ((انسان باید یوازي په روحي چاپیریال کي را ګېرنسي یوازي هغه شعایر و انوري چي په عبادتي ځایونوکي یې لولي))

الله ﷻ فرمایي :

إِنَّا أَنْزَلْنَا التَّوْرَاةَ فِيهَا هُدًى وَنُورٌ يَحْكُمُ بِهَا النَّبِيُّونَ الَّذِينَ أَسْلَمُوا لِلَّذِينَ هَادُوا وَالرَّبَّانِيُّونَ وَالأَحْبَارُ بِمَا اسْتُحْفِظُوا مِنْ كِتَابِ اللَّهِ وَكَانُوا عَلَيْهِ شُهَدَاءَ فَلا تَخْشَوُا النَّاسَ وَاخْشَوْنِ وَلا تَشْتَرُوا بِآيَاتِي ثَمَنًا قَلِيلا وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ (٤٤)وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيهَا أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ وَالأَنْفَ بِالأَنْفِ وَالأُذُنَ بِالأُذُنِ وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ فَمَنْ تَصَدَّقَ بِهِ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَهُ وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ [٥]

ژباړه :بېشکه چي تورات مونازل کړی دی، په هغه کي لارښوونه او رڼا ده د(بني اسرائیلو )رسولانو چي دالله ﷻ فرمان ته غاړه ایښې وه په هغه کي به یې یهودانو

[٥](۴۵ـ۴۴)المائده

تـه حکـم کـاوه او ربـاني پوهـانو او د یهـودو عالمـانو هـم پـه دې سـبب چـې دوی دکتـاب پـه سـاتلو گمـارل سـوي وه او پـر حقانیت یـې شـاهدان وه، نـو لـه خلگـو څخـه مـه وېرېـږئ او زمـا پرایتونـو لـږه بیـه مـه اخلـئ او څـوک چـي پـه هغـه شـي چـي اللـه ﷻ نـازل کـړي دي حکـم ونـه کـړي نـو هـم هغـوی کـافران دي او هغـوی تـه مـو دا لیکلـی وو چـې دنفـس پـه بـدل کـې نفـس او سـترگه دسـترگې او غـوږد غـوږ او غـاښ دغـاښ ، او پر ټپونـه یـو دبـل پـه بـدل کـي قصـاص کېـږي، څـو ک چـي لـه قصـاص څخـه تېـر سـو دغـه تېرېـدل دهغـه دگنـاهونو کفـاره ده او چـاچي پـه هغـه شـي چـي اللـه ﷻ را نـازل کـړي دي حکـم ونه کړي نو هغوی ظالمان دي.

قرانکـریم د تـورات د شـریعت یومثـال فرمـایلی دی چـي دېـر ي نقطـې پـه هغـه شـریعت کـي ځـای کـړل سـوي دي. د هغـه پـه وسیله موسـي «ع»او تـر هغـه وروسـته د بنـي اسرائلو ټولو نبیانو پـه وروسـته پـه پـر لـه پسـې قرنونـو کـي خپـل عملـي ژونـد ور څخـه تنظـیم کـړئ وو. وروسـته عیسـي (ع)لـه ځانـه سـره شـریعت راوړ . وروسـته دا عیسـي(ع) چـي اللـه ﷻ و اسـرائیلو تـه را اسـتولي وو همـدا علـت وو، چـې هغـه پـه ډېرلـږ تـو پیـر سـره تـورات ومنـي ځینـي سـختي برخـي یـې د یهـودو لـه اوږو پورتـه کړلـې. هغـه څـه چـي د یـوه چـا لـه پـاره

به یې جزا ټاکله په دوی یې په کفاره ومنله، په دې اړوند قرانکریم داسې اشاره ورته کوي .

وَعَلَى الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا كُلَّ ذِي ظُفُرٍ وَمِنَ الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ شُحُومَهُمَا إِلا مَا حَمَلَتْ ظُهُورُهُمَا أَوِ الْحَوَايَا أَوْ مَا اخْتَلَطَ بِعَظْمٍ ذَلِكَ جَزَيْنَاهُمْ بِبَغْيِهِمْ وَإِنَّا لَصَادِقُونَ [٦]

ژباړه : اوپر یهودو مو هر نوک لرونکی حرام کړی و او د غوایي او مېږو څخه مو پر دوی حرامي کړي وې، خو هغه وازده (وازګه) چې د دوی پر شاګانو وه یا ددوی له هډوکو سره ګډه وه . دا په حقیقت کې هغه جزا وه، چې دوی ته مو د دوی دسرغړوني له امله وکړې او بېشکه، چې موږ رشتیا ویونکي یو .

د عیسي(ع) په توسط چې شریعت ترمیم سو نو د انسان د پاره یې د یوه حکومتي نظام په شکل صورت ونیوئ.

وَقَفَّيْنَا عَلَى آثَارِهِمْ بِعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرَاةِ وَآتَيْنَاهُ الإنْجِيلَ فِيهِ هُدًى وَنُورٌ وَمُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرَاةِ وَهُدًى وَمَوْعِظَةً لِلْمُتَّقِينَ

---

[٦] (١٤٦)الانعام

(٤٦)وَلْيَحْكُمْ أَهْلُ الإِنْجِيلِ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فِيهِ وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ [٧]

ژباړه:او تر هغه(ابراهيم ع)وروسته مو د مريمي زوی،د هغه څه دتصديق کوونکي په توګه در ولېږئ،چي د ده څخه پخوا راغلی(تورات) څخه عبارت دی او هغه مو ته انجيل ورکړ، چي په هغه کي لارښوونه او رڼا وه او هغه څه ريښتونونکي دي ستاسي په وړاندي هغه تورات دی او دځان ساتونکو(متقيانو)له پاره لارښوونه او پند وو او د انجيل څښتنان دي په هغه څه حکم وکړي،چي الله په انجيل کي رانازل کړي دي څوک چي په هغه څه حکم ونه کړي،چي الله نازل کړي، نو دغه کسان بدکاران دي.

## دتيرو دينونو ځای ناستی او بشپړه دين «اسلام»

له دې څخه وروسته محمدﷺپه اسلامي شريعت مبعوث سو .د اسلام څخه مخکي اسماني شريعتونه، چي له ده مخکي را نازل سوي دي رسول الله ﷺ يې نه ردوي، بلکي د هغوی تصديق کوي او له هغوی څخه دفاع کوي په همدې بنسټ د اسلام پيغام د ټول انسانيت له پاره دی اسلام دين ورستی دين دی، د خپل جامعيت او کليت پر اساس يې د نورو دينونو انتساخ منځته را وړی دی.د اسلام

[٧](٤٧)المائده

په رڼا کې انسان ته د هدایت،رشد او پرمختګ لارې ښوول سوې دي.

د اسلام په دین کې هرهغه نقطه بیان سوې ده، چې د انساني ژوندانه ټول اساسات پکښې روښانه کیږي کوم خلګ چې یې پیروي کوي. هغوی د ناپوهۍ او جاهلیت له تورتمونو رادباندې دي مطیع او د الله ﷻ د امر وړونکي دي .څنګه چې ښایې اسلام یې په زړه کې له اللهﷻ څخه ویره ور اچولې ده په دې کړنې سره اللهﷻ هغوی ته ښکلی ژوند ور کړئ دی.

الله پاک په دې اړوند فرمایي:

وَأَنْزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ الْكِتَابِ وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ وَلا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ عَمَّا جَاءَكَ مِنَ الْحَقِّ لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنْكُمْ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً وَلَكِنْ لِيَبْلُوَكُمْ فِي مَا آتَاكُمْ فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ إِلَى اللَّهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ (٤٨)وَأَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ وَلا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ وَاحْذَرْهُمْ أَنْ يَفْتِنُوكَ عَنْ بَعْضِ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ إِلَيْكَ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَاعْلَمْ أَنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ أَنْ يُصِيبَهُمْ

بِبَعْضِ ذُنُوبِهِمْ وَإِنَّ كَثِيرًا مِنَ النَّاسِ لَفَاسِقُونَ (٤٩)أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ حُكْمًا لِقَوْمٍ يُوقِنُونَ [٨]

ژباړه: اوتاته مو په حقه كتاب نازل كړئ دى . دا كتاب د هر هغه كتاب تصديقوونكى دى چي له ده څخه مخكي و او د هغه ساتونكى دى نو د دوى تر منځ په هغه څه چي الله نازل كړي دي حكم وكړه او د هغوى د ريښتنو حكمونو په بدل كي چي تاته راغلي دي د دوى د نفساني غوښتنو پيروي مه كوه ستاسي د هري ډلي له پاره مو شريعت او يوه روښانه لاره وټاكله كه الله ﷻ اراده كړې واى، نو هرو مرو به يې تاسي يو امت گرځولى واى خو الله ﷻ غواړي چي تاسي په هغه څه مو خبر كړي چي اختلاف مو پركاوه.

او اې رسوله ﷺ!

د دوى تر منځ په هغه څه چي الله ﷻ نازل كړي دي حكم وكړه او ددوى دنفساني هيلو پيروي مه كوه او له دوى څخه وېره وكړه هسي نه چي تا تېر باسي او له هغه څه دي واړوي، چي الله ﷻ پر تا نازل كړي دي،كه دوى مخ واړاوه، نو يقين وكړه، چي بېشكه الله ﷻ غواړي چي د دوى د ځينوگناهونو له كبله دوى ته عذاب ورسوي په

[٨](٥٠)المائده

رشـتیا،چي لـه خلگـو څخـه ډېـر يـې بـد کـاران دي. نـو ايـا دوی د جهالـت د زمـاني حکـم غـواړي د يقـين کوونکـو خلگـو لـه پـاره بل څوک تر اللهﷻ ښه حکم ورکولای سي؟

د دې ټولـو غټـو مـذاهبو سـربيره هـر اسـماني ديـن د واحـــد او لاشـــريك ذات ﷻ د مننــــي او پــالني پــه خـــاطر د ژوندانـه لـوړه لاره ښـوولي ده. لـه نـوح(ع) څخـه نيـولې بيـا تـر هغـه را وروسـته ټـول نبيـان(ع) د بېلابېلـو لارو او شـريعتونو پـه پلـي کولـو سـره د همـدې مقصـد لـه پـاره پـه پيغمبـرۍ مبعـوث سـوي وه. سـره د دې چـي پيغمبرانـو (ع) بـه پـه شـريعتونو کـــي کـــوچني اختلافــات وه ،خـــو پــه تفصــيل ســره د ټولـــو شـريعتونه لـه يـوې سـرچيني خړوبيـدل، چـي پـه اصـل کـي يـو شـان او هـدف وو او د بنـدگانو لـه غلاميـه د بنـدگانو ازادول او د الله ﷻ و بندگۍ ته دهغوی دعوت اورا اړول وه .

ترڅـو د انســاني ژوندانــه پــه مرکزيــت کــي د کوچنيــو کوچنيـــو خـــدايانو د ربوبيتونـــو طلســـمونه ورمـــات او پـــه عـوض يـې د لـوی او بـې شـريکه اللــهﷻ لاره ونيســي، و يـوه الله ﷻ ته په بندگي سرخمي وکړي .

دا څرگنــد حقيقــت اللــهﷻ پــه قرانکــريم کـــي فرمــايلي دی او د ژوندانـــه د تـــر ســره کيـــدو طـــرز يـــې پـــه اجمــالي ډول رهنمــايي کـــړ ی،څـــو د اللـــهﷻ رضـــا پکښـــي

حاصله سي. د دې ټولو کائناتو خالق هم همدا یو الهی جَلَّجَلَالُهُ ذات دی، چې دکائناتو او انسانیت د ظرفیت د کِلیېو صلاحیت هم ور سره دی په همدې ترتیب یې ددې وروستي دیني مقام په ټولو دینونو کي څرګند کړي دی، د نورو دینونو تګ او د دې وروستي دین او ساتنه د دوی نور څه دي؟

همدا دین دی، چې د خپلو پیروانو او نورو ناقصو دینونو د پیروانو ته منځ کي یې بیلتون او فاصله ټاکلې ده. الله جَلَّجَلَالُهُ فرمایي:

وَمَا اخْتَلَفْتُمْ فِيهِ مِنْ شَيْءٍ فَحُكْمُهُ إِلَى اللَّهِ ذَلِكُمُ اللَّهُ رَبِّي عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ (١٠)فَاطِرُ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ جَعَلَ لَكُمْ مِنْ أَنْفُسِكُمْ أَزْوَاجًا وَمِنَ الأَنْعَامِ أَزْوَاجًا يَذْرَؤُكُمْ فِيهِ لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ (١١)لَهُ مَقَالِيدُ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَشَاءُ وَيَقْدِرُ إِنَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ (١٢)شَرَعَ لَكُمْ مِنَ الدِّينِ مَا وَصَّى بِهِ نُوحًا وَالَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ وَمَا وَصَّيْنَا بِهِ إِبْرَاهِيمَ وَمُوسَى وَعِيسَى أَنْ أَقِيمُوا الدِّينَ وَلا تَتَفَرَّقُوا فِيهِ كَبُرَ عَلَى الْمُشْرِكِينَ مَا تَدْعُوهُمْ إِلَيْهِ اللَّهُ يَجْتَبِي إِلَيْهِ مَنْ يَشَاءُ وَيَهْدِي إِلَيْهِ مَنْ يُنِيبُ (١٣)وَمَا تَفَرَّقُوا إِلا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ وَلَوْلا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَبِّكَ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ

وَإِنَّ الَّـذِينَ أُورِثُـوا الْكِتَـابَ مِـنْ بَعْـدِهِمْ لَفِـي شَـكٍّ مِنْـهُ مُرِيـب (١٤)فَلِـذَلِكَ فَـادْعُ وَاسْـتَقِمْ كَمَـا أُمِـرْتَ وَلا تَتَّبِـعْ أَهْـوَاءَهُمْ وَقُـلْ آمَنْـتُ بِمَـا أَنْـزَلَ اللَّـهُ مِـنْ كِتَـاب وَأُمِـرْتُ لأَعْـدِلَ بَيْـنَكُمُ اللَّـهُ رَبُّنَـا وَرَبُّكُـمْ لَنَـا أَعْمَالُنَـا وَلَكُـمْ أَعْمَـالُكُمْ لا حُجَّـةَ بَيْنَنَـا وَبَيْـنَكُمُ اللَّـهُ يَجْمَعُ بَيْنَنَا وَإِلَيْهِ الْمَصِيرُ [٩]

ژبـاړه : او پـه هرڅـه کـې تاسـې لـه (کـافرانو) سـره شـخړه کـوئ، نـو د هغـه په(هکلـه )حکـم اللـهﷻ تـه ورگرځـئ دا اللـهﷻ زمـا رب دی یـوازې پرهغـه مـې توکـل کـړئ او یـوازې هغـه تـه ورگـرځم.د اسـمانونو او مځکـې پیـدا کـوونکی دی تاسـې تـه یـې ستاسـې لـه ځـانو نـو څخـه جـوړې گرځـولي دي او هـم یـې لـه څـارویو څخـه جـوړې گرځـولي دي او پـه دې توگـه تاسـې د مځکـې پـرمخ زیـاتوې هـیڅ شـی هغـه تـه ورتـه نـه دی اوهـم دی اورېـدونکئ لیـدونکئ دی. د اسـمانونو او مځکـې کلیـاني یـوازې ده لـره دي هـر چاتـه چـې وغـواړي روزي یـې پراخـوي یـایې تنگـوي ببشـکه چـې دی پـه هرڅـه پوهېـدونکی، تاسـې تـه یـې د دیـن هغـه کـړنلار ټـاکلې ده چـې د هغې حکم یې نوح تـه کـړی و اوهغـه څـه چـې تاتـه مـو وحـې کـړې ،هغـه څـه چـې ابـراهیم او موسـې اوعسـې(ع) تـه مـو حکم کړی و چـې دیـن ټینـگ کـړئ اوپـه هغـه کـې اختلاف مـه

[٩](١٥)الشورا

کـوئ مشـرکانودا خبـره چـې تـه یـې وربـولې ترپـام بـده راغلـې ده . اللـهﷻ هرڅـوک چـې وغـواړي ځانتـه یـې غـوره کـوي او هـر څـوک چـې هغـه تـه مـخ ورواړوي هغـه تـه لارښـوونه کـوي . او دوی اختلاف ونـه کړ خـو وروسـته لـه هغـې چـې پـوه سول هغـه هـم دهغـه تیـري لـه کبلـه چـې پخپلـو منځـوکې یـې کاوه کـه سـتا رب تـر مخـه دانـه واى ویلـې چـې تـر ټاکلي نېټـې پـوري دي پرېکـړه وځنـډول سـي هـرو مـرو بـه د دوی پـه مـنځ کـې پرېکـړه سـوې وای او بـې شـکه هغـه کسـانو تـه چـې تـر دوی وروسـته کتـاب پـه میـراث ورکـړل سـو ی دی هغـوی د هغـه لـه پلـوه هـرو مـرو پـه اندېښـمنوونکې شـک کـې لوېـدلي دي، نولـه همـدې کبلـه دوی د اسـلام دیـن تـه راوبولـه پـه هغـه توګـه چـې مـامور کـړه سـوئ یـې ټینـګ اوسـه د دوی او د غوښـتنو پیـروي مـه کـوه اوووایـه پـه هـر هغـه کتـاب چـې اللـهﷻ را لیږلـی دی ایمـان لـرم اومامورسـوئ یـم چـې ستاسـې پـه مـنځ کـې عـدل وکـړم اللـهﷻ زمـوږ رب هـم دی او ستاسـې رب هـم مـوږ تـه خپلـې کړنـې دي او تاسـې تـه هـم ستاسـې کړنـې دي مـوږهر یـو بـه دخپلوکړنـو پایلـه ووینـو زمـوږ اوستاسـې تـرمنځ د کـوم سـند د راوړلـو اړتیـا نسـته اللـهﷻ بـه موږ یوه ورځ را ټول کړي او یوازې ده ته بیرته ورتګ دی.

د شعيب (ع)قوم او د مدين د اوسيدونكو په اړوند چي څه په قران كريم كي ذكر سوي دي .په هغه ذكركي د عملي ژوندانه قوانين بيان سوي دي په نوموړي قوم باندي اعتراض هم په همدې بنسټ وو چي هغوى د خپل دين والا او واحد ذات نه سواى درك كولاى، چي د يو جامع ژوندانه د نظام اساس يې ورته ټاكلى وو يوازي قلبي ارادې او د شعايرو ادا كول په عبادت خانو او مسجدونو كي محدود نه دي ، د مخكنيو دورو سره سره د مدين د خلگو د دين خيالي اټكل د نوموړو جهالت نه سواى پورته كولاى، څكه نوموړي د مخكنيو خلگو سره يو شان وه.

وَإِلَى مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُمْ مِنْ إِلَهٍ غَيْرُهُ وَلا تَنْقُصُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ إِنِّي أَرَاكُمْ بِخَيْرٍ وَإِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ مُحِيطٍ (٨٤)وَيَا قَوْمِ أَوْفُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ بِالْقِسْطِ وَلا تَبْخَسُوا النَّاسَ أَشْيَاءَهُمْ وَلا تَعْثَوْا فِي الأَرْضِ مُفْسِدِينَ (٨٥)بَقِيَّةُ اللَّهِ خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ وَمَا أَنَا عَلَيْكُمْ بِحَفِيظٍ (٨٦)قَالُوا يَا شُعَيْبُ أَصَلاتُكَ تَأْمُرُكَ أَنْ نَتْرُكَ مَا يَعْبُدُ آبَاؤُنَا أَوْ أَنْ نَفْعَلَ فِي أَمْوَالِنَا مَا نَشَاءُ إِنَّكَ لأَنْتَ الْحَلِيمُ الرَّشِيدُ [١٠]

[١٠](٨٧) هود

ژبـــاړه: اود مـــدين قـــوم تـــه مـــو د دوی ورور شـــعيب لېږلی وو . ده وويل اې زما قومه!

د اللـه ﷻ عبـادت وکـړی تاسـي تـه لـه هغـه پرتـه بـل د عبـادت وړنســته او پيمانــه او تلــه مــه کمــوئ بېشــکه چــي زه ستاســي شــتمن ويــنم اوبېشــکه چــي زه پــر تاســي د چاپېرېدونکي ورځي له عذابه وېرېږم او اې زما قومه!

پيمانـه او تلـه پـه انصـاف سـره پـوره ورکـړئ خلگـو تـه د دوی شـيان مـه کمـوئ او پـه مځکـه کـي فسـاد تـه لاس مـه اچـوئ.کـه مومنـان ياسـت د اللـهﷻ درکـړې زيرمـه ستاسـي لـه پـاره غـوره ده پـه هـر حـال زه ستاسـي سـاتونکی يـم.د شـعيب قوم وويل: اې شعيبه!

ايـا سـتا لمـونځ تاتـه حکـم کـوي چـي مـوږ هغـه څـه چي زموږ پلرونو د هغه عبادت کاوه پرېږدو؟

او پـه خپلـو مـالونو کښـي لکـه چـي غـواړو تصـرف ونـه کړو؟ يوازي همداته لوړ ظرفی اوربښتونی انسان پاته يې .

همدارنگـه قـران کـريم همـدا حقيقـت بيـا ښـکاره کـړي دی لکه صالح(ع)چي خپل امت ته فرمايلي وه.

فَـــاتَّقُوا اللَّـــهَ وَأَطِيعُـــونِ (١٥٠)وَلا تُطِيعُـــوا أَمْـــرَ الْمُسْرِفِينَ (١٥١)الَّذِينَ يُفْسِدُونَ فِي الأَرْضِ وَلا يُصْلِحُونَ [11]

[11](١٥٢) الشعراء

ژباړه: نو له الله جَلَّ جَلَالُهُ و وېرېږئ او زما پیروي وکړئ او دهغو خپل سرو خلګو پیروي مه کوئ، د هغو کسانو چې په مځکه کي فساد خپروي او اصلاح نه کوي.

د الله جَلَّ جَلَالُهُ پاك كلام قرانکریم په بل ځای کي د ټولو انبیاؤ فرائض، مقاصد او اهداف په کلي توګه تعینوي. یعني کله چي د یوې ټولني د خلګو تر منځ کومه ترپګني را منځته سي او یائي تر منځ شخړي موجودي وي، نو همدغه الهي کتاب او نبوي شریعت یې تر منځ د یوه فیصله کوونکي قوې په توګه رول لري .

كَانَ النَّاسُ أُمَّةً وَاحِدَةً فَبَعَثَ اللَّهُ النَّبِيِّينَ مُبَشِّرِينَ وَمُنْذِرِينَ وَأَنْزَلَ مَعَهُمُ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِيَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ فِيمَا اخْتَلَفُوا فِيهِ وَمَا اخْتَلَفَ فِيهِ إِلا الَّذِينَ أُوتُوهُ مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَاتُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ فَهَدَى اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا لِمَا اخْتَلَفُوا فِيهِ مِنَ الْحَقِّ بِإِذْنِهِ وَاللَّهُ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ [۱۲]

ژباړه: خلګ دپیدایښت په پیلامه کښي یو ملت و، وروسته له هغه الله جَلَّ جَلَالُهُ نبیان (ع) د زیري ور کوونکو او وېروونکو په توګه ورته راولېږل او له دوی سره یې کتاب په حق سره نازل کړ، چي نبیان د خلګو تر منځ په هغه مسئلو

[۱۲] (۲۱۳)البقره

کـي چــي شـخړي يـې پکښــي کـړي دي حکـم وکـړي او يـوازي هغــو کســانو پکښــي شــخړي وکــړې، چــي ورتــه کتــاب ورکــړل سـوئ و وروسـته لـه هغـه چـي ځرگنـدي نښـانې ورتـه راغلـي وې دغـه کـار د سرکښـۍ لـه کبلـه، چـي د دوی تـر مـنځ را پيـدا سـوئ وو سـرته ورسـېد، نـو اللـه پخپلـه اراده مومنـانو تـه ددوی د شـخړو پروخـت د حـق لـوری وښـود او اللـه ﷻ هغـه څـوک چي ويې غواړي پرسمه لار روانوي .

دا بحـــث د اللـــه د پيغمبرانـــو فرضـــيتونو تـــه د مسئوليت تـر سـره کيـدو تـه د پـای ټکـي ږدي يعنـي اللـه ﷻ مقصـد د ديـن پـه هکلـه ټـاکي. هغـه ديـن چـي د اللـه ﷻ لـه لـوري د ژوندانـه اسـاس غـوره سـوئ دی پـه لنـډ ډول لـه دې بحـث څخـه ښېلـه دې چـي ديـن يـو حقيقـت او واقعيـت و بولـو،د ژوندانـــه حـــاوي يـــې و بولـــو او د ژوندانـــه د اړتيـــا دپـــوره کولونظام يې وبولو؛دبل څه مفهوم نه سوئيني اخيستلای

کـه چيـري هغـه قـوانين او انديښـنې چـي د دا ډول حقـايقو پـه پلـي کولـو او د هغـو پـر تنظـيم ونـه تـوانيږي ، نـو داسـي نظـام بـه يـوازي، پـر اعتقـاداتو ولاړ وي چـي فصـاحت، د کائنـاتو حقيقـت، د هغـوی رابطـه د هغـوی لـه پيـدا کـوونکي سـره اړيکـه او پـه هغـه کـي د انسـاني مقـام منزلـت د انسـانيت

هـدف او د هغـوی د اصـولو نوعیـت روښـانه وي پـه لاس نـه راکوي.

کـه د انسـان او اللـه ﷻ تـر مـنځ اړیکـي وي، یـا د انسـان او کائنـاتو تـرمنځ اړیکـي وي او یـا پـه یـو چـل د چلونـو د بشـر او مخلوقـاتو تـر مـنځ وي کـه چیـري تصـور او مفکـوره هـر اړخیـزه او بشـپړه نـه وي او د اللـه ﷻ لـه دیـن څخـه یـې سـر چینـه نـه وي اخیسـتې نـو دادیـن نـه دی ، بلکـي دا یـوه نفسـي غوښتنه ده چـي خلگـو د دیـن پـه نـوم یـې لـه ځانـه سـره سـاتلې ده.دا یـوه نـا پـوهي ده چـي اللهﷻ یـې پـه وړانـدي اسـماني دیـن د همـدې لـه پـاره را نـازل کـړی دی، چـي انسـان د جهالـت او تورتمونـو لـه تـاریکو څخـه راباسـي او د نیکمرغـۍ لوړو درجـو تـه یـې ورسـوي.کـه د انسـان بنـدگي د اللـه ﷻ لـه خـوا د تعینـو سـوو اموراتـو او فرضـیاتو پـر افـق برابـره نـه وي، نو دا بنـدگي د انسـان لخـوا و اللـه ﷻ تـه نـه ،بلکـي د بنـدگانو لخوا بندگانوته ده .

هـر الهـی دیـن پـه خپـل وخـت او زمـان کـي د دې لـه پـاره را نـازل سـوي دی چـي انسـانانو تـه یـې لـه خطراتـو څخـه نجـات ورکـړي. د خبـرو د اوږدوالـي لـه پـاره نـه غـواړم لیـري ولاړ سـم، ولـي کـه د ارو پایـانو تـر مـنځ مناقشـات او ستونزي موجـودي نـه وای. د دولـت او دیـن تـر مـنځ بیلتـون نـه

واي نـو څرگنـده وه، چـې د یهـودي او عیسـوي رهبرانـو، همـدا شـان دپاپـانو او سـلطنتي کورنیـوتر منځونـو بـه دتېـرو پېړیـو ترېگنـۍ شـاهداني نـه واى .لازمـه ده چـې پـر هغـو واقعیتونـو بانـدي پـه سـر بیـرن ډول رڼـا واچـوو، چـې اللــه ﷻ زمـوږ مقـدس دیــن او تــاریخ ژونــدی ځنــي را ســاتلی دی،خــو مـوږ بـدبختي پخپلـو لاس لـه اروپـا څخـه اسـلامي نـړۍ تـه را وارادە کړې ده .

## د دین او دنیا تفکیک «بېلوالی»

تفکیـك د دیـن او مـزاج پـه وړانـدي یـوه بېلـوونکې کړنـه ده، چـې پـه ژوندانـه کـي د اللـه ﷻ پرسـتۍ پـه اصـولو کـي امکـان نـه لـري، د ژوندانـه پـه مختلفـو گوښـو کـي ، د عبـادتي شـعایرو د هغـوی څرنگـوالي پـه اخلاقـي او وجـداني اړخ کـي پـه یـوه چاپېره دایـره کـي را ایسـار دي او د بانـدي ئـې د وتلـو لاره نـه لـري اللـهﷻ دا ده تفکیـك اړخ د ژوندانـه پـه ډېرخوارځـواک حالـت کـي بللـی دی. کـه د انسـاني ژوندانـه ټـولي برخـي چـې د انسـاني معبودانـو تـابع سـي او خپلـي نفسـي غوښـتني د اللـه ﷻ د امـر څخـه ماسـیوا د نومـوړو معبودانـو د لاري تـابع وگرځـوي . د نفسـي خواهشـاتو پـر لاره ولاړ ســي او د ژوندانــه اصــول او قــوانین د بنــدگي امرپــه چوکـاټ کـي وضـع کړي،نـو هلتـه بـه انسـان خپلـه د خـوارۍ او

ذلت په لومه کې را ګېر سي د اسلام فطرتي دين د داډول کړنو سره مخالف دی، چې د دنياېي ژوند پريکتازۍ بسنه وکړي او يا دا چې يوازي انسانان د اخروي ژوند ،اخروي خلاصون او جنت ته د داخليدو په موخه لاره خپل کړي .په دې سره انسان نسي کولاي سي چې د الله ﷻ له لوري له ورکړل سوو نعمتونو څخه په ژوندانه کې د هغه د ښه تېرولو له پاره ګټه پورته کړي.

هغه مسئوليتونه، چې د مځکې پر مخ يې انسان ته د خلافت کولو په موخه ور سپارلي تر سره نه کړي. هيڅ وخت مځکه د اسلام په دين کې نه شامليږي، په کولو سره به يې انسان خپل ځان د کوچنيانو د بازيو د شيانو په توګه و کاروي يا يو څو مراسم وي چې د ژوندانه له اسلوبو سره تړاو ونه لري.

که دين د کوچنيانو د بازيچي په شکل سي، نو ښکاره به وي، چې هغه بېله د خندا وړ بل شی نه دی. موږ دا پوښتنه کوو، چې دا مفکوره چيري او له چاسره ده چې د دين او انساني ژوندانه تر منځ يو تفريق منونکي، نا مطلوب او نا خوښه منطق را منځته دی؟

په عمومي اوضاع کې د دين او دنيا تفکيك يو ناخوښه او تير ايستونکي کړنه ده. د همدې اوضاع پيلامه

لمړی په اروپا او بیا وروسته یو په بل پسې ټولې نړۍ ته وغځېده غرب او غرب پلوه هیواد ونه ددې لامل سول، چې د انسانانو په وړاندې ظلم کولو دروازه ورخلاصه کړي.

کله چې انسانان د الهي ﷻ نظامونو څخه مخ اړوي بله لاره نسته بېله دې، چې انسانان دي د بنده د بندګۍ لاره غوره کړي او بېله فلاکت او بدبختیه دي بل څه ځانته غوره کړي او د راتلونکي له پاره د خپل ځان له پاره مسئولیتونه او مشکلان وزیږوي. لکه څه ډول چې یهودي حکمرانانو، او رومن حکمرانانو د سوریې پر مځکه دا سې نظام جوړکړي وو چې عیسی (ع)یې(ددوی په اصطلاح)په دارو ځړاوه او د مسیح(ع)د قتل دوسیه یې په پوره بریالیتوب سنجولې وه حال داچې الله ﷻ هغه پخپل حکمت سره اسمان ته و خیژاوه

کله چې ددوی په اصطلاح پردارکوم شی وځړول سو. د مسیح(ع)د پیروانو او یهودو تر منځ پخپله وحشتناکه کش ماکش را منځته سو .د عیسویانو اویهودیانو تر منځ د نفاق زړئ د هغوی په زړونو کې شین او ترمنځ یې د نفرت، سپکتیا او بدبینۍ زونې په زړونو کې راشنې سوې.

یهودیان له عیسویانو او عیسویان له یهودانو بېګانه سول . حال دا چې د عیسي(ع)بعثت ددې له پاره وو چې

په یهودیت کې ترمیم راولې او دواړو ټبرونه ته دحقیقت لاره وښوي، تر دې را وروسته د رسول اللهﷻ په راتگ کې د روحانیت تجدید، تمدن او اخلاق هم شامل وه، ولې د عسې(ع)د پیروي څخه د مخ اړوني پر بنسټ په پایله کې یو طاغوتي نظام را منځته، چې بیله ستونزو او غمونو ؛خه ] بل څه نه درلودل په هغه صورت کې انسانان یوه او بل ته ضرر رسوونکي وه.

هر اسماني دین د دې له پاره نړۍ ته راغلې، چې ټولې دنیایې چاري پخپل چاپیر کې وساتي . یهودیت راغلي د دې له پاره چې بنې اسرائیلو ته اسانتیا برابره کړي تر یهودیت وروسته عیسویت دین د دې له پاره راغلی چې تیر یهودیت ترمیم او د ژوندانه له پاره اساسي نظام جوړ کړي، ولې یهودانو نصراني نظام ونه مانه ،د هغه حقیقت او ترمیم یې هم ونه زغمئ هغه، چې مسیح(ع) ته د اللهﷻ له لوري رانازل سوئ دین وو قران کریم یې داسې تشریح کوي:

وَمُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرَاةِ وَلأُحِلَّ لَكُمْ بَعْضَ الَّذِي حُرِّمَ عَلَيْكُمْ وَجِئْتُكُمْ بِآيَةٍ مِنْ رَبِّكُمْ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ.

ژباړه او زه د هغه تورات رښتونوونکئ راغلی یم ، چې زما څخه پخوا وو او د دې له پاره، چې ځینې هغه شیان درته

حــلال کــړم، چـــي پرتاســـي حــرام ســوي وه اوتاســـي تـــه مــي ستاســي د رب ښـکاره معجـزه راوړې ده، نـو لـه اللـه ﷻ څخه ووېرېږی او زما خبره ومنئ.[13]

پـه دې ترتیـب سـره یهودانـو د عیسـي(ع)د بلنـي او دعـوت پـه وړانـدي مخالفـت وکـړ. داسـي دعـوت چـي د پـاکی، نفســي تزکیــې ، روحانیــت او ســلامتیا دیــن وو همــدا علــت وو، چـي یهودانـو د خپلـو ظـاهري کړنـو پـه قیـد کـي خپـل پخوانیـو مـذهبي مراسـموته تـر عیسـویت تـر جـیح ورکوله. زړونـویې لـه تقوا سره کومه اړیکه او مینه نه درلوده.

کلــه چـــي د یهودانـــو او نصــرانیانو د مخکښــانو تــر مــنځ د کینـــې او عـــداوت فضـــا را منځتـــه ســـوه د عیســـویانو کتــاب انجیـــل د یهـــودو تـــر کتـــاب تـــورات مقـــدس شـــمیرل کیـدی، خـو د هغـوی پـه شـریعت کـي تـورات علیحـده وو او د بنــي اسـرائیلو پـه مـنځ کـي ښلـه دې،چـي یهـودي یـا نصـراني وي هماغه شریعت یې ؤ چي په تورات کي را نازل سوئ وو.

د تــورات او انجیــل پــه تجزیــه ســره عیســویان هــم ونــه توانیـدل، چـــي د ژوندانــه ســالمه برنامــه ولــري او یــوه منظمــه تګـلاره دي د ژوندانــه لــه پــاره غــوره کــړي، یــوازي عقیــدوي صــبغه وه، چـــي لــه دوی ســره پاتــه وه، کــه نومــوړو عمــلا روی

[13] (۵۰)العمران

کـارکړی واي د دې امکـان ډېـر وو چــي د نومـوړو د ژوندانــه پـه عملــي او عقیـدوي اړخونـو کــي زیـات پرمختــګ ســوی وای او د کائنـــاتو پـــه جهـــان کـــي انســـانانو خپـــل ځـــا نتـــه ځلیدونکي ځای غوره کړی وای.

داســي هــم کېدلــه ؛پــه کائنــاتو کــي د انســانانو د ژوندانــه حقیقــي ځــلا تشــریح او د هغــې توضــیح بــه د یــوه ټولنیزعـدالت لـه پـاره یـوه اړینـه برنامـه وای دا پخپلـه د ټـولنیز نظـام لـه پـاره ټـولنیز ژونـد اسـاس وو همدارنګـه کـه د عیسـویت مفکـوره عیسـویانو پـر خپـل اصـلي اسـاس پاتـه کـړې وای . هغـه چـي د لـوی الله ﷻ لـه لـوري پـر عیسـي(ع)د دوی د سـړیتوب لــه پــاره را نازلــه ســوې وه. ډېــر احتمــال ددې وو چـــي پــه موســوي شــریعت کــومي برخــي چــي پــه تــورات کــي وې او یهودو د هغـوی پـه عملـي کولـو کـي د ځـانو لـه پـاره د تکـالیفو اســباب بلــل او یــا هغــه حکم،چــي دوی پخپلــه پــه موســوي شــریعت کــي لــه ځانــه ور اچـولی ؤ او یـا یــې عمـل پـه کـاوه د ځـانونو د آرامـی لـه پـاره بـه یـې بیـا د عیسـي (ع)د شـریعت پـر لـوري را مـخ کـړي وای او لـه دواړو څخـه یـې یـو مخلـوط شریعت جوړ کړئ وای.

داســي ونــه ســول حــال داچــي د پېښــو پــه جهــان کي هغـه څـه پـیښ سـول چـي : یهـودو او د سـیمي رومـي بـت

پرستان د عیسی(ع)د حواریونو پر خاوره مسلط وه . پر نوموړو حواریونو بیچاره گانو د خپل استبداد او ظلم پرته بل کار وانه خیست او هغه بیچاره گان یې دې ته اړیستل، چې په ښکاره د عیسویت د تبلیغ پروسه پر مخ بوزي او دا لاره ځانته د نجات یو رونق وبولي.

هغوی چې په مخفیانه ډول یې د عیسویت د تبلیغ لاره په ډېر سرعت سره پر مخ بېوله د انجیل د نصوصو په رڼا کې یې پوره تغیرات په عملي ژوندانه کې ثابت کړل. پردې بنسټ چې وخت او زمان ، د دعوت پرله پسې والی د حقیقي عیسویت پیژندنه او د هغه عملي کول یې په رښتوني توگه مدنظر ونه نیول تر هغه چې د انجیل راویانو د عیسی(ع) رښتونی ژوند لکه څه ډول چې ښائېدل هغه سي یې نه عملي کاوه او نه یې کټ مټ رانقلاوه ، نو یې پردې بنسټ ځیني خیالي نظریات په انجیل ورگډ کړل او هر انجیل یې تر ډېره له خپل اصلیت څخه په مغایرت بل بندگي انجیل ټولني ته وړاندې کړ.

په همدې بنسټ د انجیل په اصلیت کې پخپله د عیسوي راهبانو تر منځ ضد او نقیص مسائل د هغوی د اختلافاتو لامل و گرځیدل . په پایله کي د یوه په عوض څو انجیله په وجود راغلل په دې څو انجیلونو کي د

عیسـی(ع)د ژونـد پـه اړونـد بېـل بېـل نظریـات واقـع او عیسـوي تـولني تـه وړانـدي سـول. د دې انجیلونـو ځینـي برخـي پخپلـه د عیســی(ع) د خپلــو خبــرو څخــه دوی جــوړي کــړي وې د هغه ایـاتونو پـه عـوض چـي د الله جَلَّ جَلَالُهُ لـه لـوري ورتـه راغلـي وې پکښې ځای کړل .

## د تثلیث د مفکورې باني«سینت پال»پولوس

څـو متعـدد انجیلونـه چـي د ژبـو پـر سـر حسـابیږي د عیسـی(ع) لـه زمـانې څخـه یـوه پیړۍ پـه دننـه کـي جوړسـول. د عیسـوي مورخینــو د اروایتونــه را وړانــدي کــړي دي چــي تــر مـنځ یــې د ۴۰ او۶۴ مـیلادي کلونوپـه لړکـي دېراختلافـات وه. پـه همـدې بنسـټ څـوك نسـي څرگنـدولای چـي د انجیـل اصـلي ژبـه کومـه ده؟ بلکـي د اصـلي ژبـي پـه عـوض یـې ترجمــې ژبــاړي لوســتونکي پــه لاس کــي لــري. د پولـوس[14]((سـینت پـال)) پـه واسـطه د اروپـا پـه نړۍ کـي د عیسـویت دیـن خپـور سـو . نومـوړي د عیسـوي دیـن د قبلیـدو تـر مخـه دبـت پرسـتۍ دیـن چلـه پـه غـوړ وو .هغـه هیڅکلـه لـه عیسـی (ع) سـره ملاقـات نـه وو کـړي او نـه یـې لـه هغـه څخـه

---

[14] د معاصر سیاسي مکتب مبتداء (...Poli)حروفو سره کیږي هم د سینت پال پولوس د نامه سره تړاؤ پیدا کوي او دا مدرک په لاس راکوي چي د politics, police, policy او .... کلمات له پورته نامه څخه مشتق سوئ دي. قران مل

کوم تعلیمي هدایات اخیستي وه. پو لوس د یوناني فلسفې او بت پرستۍ نظریات د مسیحیت په دین کي داخل کړل او په اروپا کي یې د هغو په خپرولو پیل وکړ .

همدا لومړۍ بدمرغي وه، چي د اروپائي نړۍ د عیسویانو په برخه سوه او په هغه لمړیو وختو کي یې انجیل تحریف کړ.د عیسی(ع)د ژوندانه اړخونه یې ببله عوضه د خلگو د پیروۍ بنسټونه و بلل.

پولوس له لمړي قرن څخه د متعددو مجلو په خپرولو لاس پوري کړ، چي د دیني او فلسفي منطقو په اساس یې کښلي وې . هغه دین د خپل اصلیت څخه مخ بیرته د فلسفي خواته واړاوه او دې لوري ته د ور اړولو مُبَلِغ وو. هغه به هر وخت ویل«عیسی(ع)هر وخت د الله ﷻ راسته اړخ ته قرار لري» پولوس خپلو پیروانو ته توصیه کول، چي کلمه له خپله ځانه سره ووایي او د ځان د بخښني او نیکمرغۍ د غوښتني له پاره مسیح ته رجوع کوي. هغه به د نورو نبیانو په پرتله عیسی(ع)ته ترجیح ور کوي. ورته ویل به یې کله چي تاسو عیسی(ع)ته مراجعه وکړی .هغه په دې خبره ډېر خوښېږي .

په همدې بنسټ به یې ویل :«الله زما سیوع مسیح دی»(العیاذبالله ) او زه «پولوس» رسول سیوع

مسيح يم، چې په دې نامه سره يې ځان ملقب کړى او پيغمبرۍ دعوه يې کړې وه.

کله چې د پولوس نظريه مخ پر خپريدو او د عيسويت په نوم بلنه يې په خلګو کې عامه سوه . خلګو په ډېره تيروتنه نوموړى د عيسويت يو پياوړى مبلغ تلقي کړ او له هغه به ډېر خوښېدل[۱۵] .

## د پولوس په وړاندې عکس العمل

کله چې رومي واکمن «قسطنطين» د عيسويت دين ومانه خلګو دا ګمان کاوه، چې د دې دين رښتينولي پردې ثابته سوه، چې دين اوس په دولت بدل سو. د يوه دولتي قوت په توګه به د نړۍ پرمخ ډېر ژر خپور سي حال داچې د اتازوني په نوم يوه مفکر پخپل اثر(دين او علم) کې په دې هکله ويل: «د عيسويت په صف کې د منافقينو نفوذ د بت پرستۍ مکروب را داخل کړئ دى.دا منافقين د لوړو هدفونو د ترلاسه کولو له پاره د رومي دولت واك غواړي، چې په لاس کې يې وساتي او د قوم له پاره يو خطرناك او شر اچوونکى بديل په وجود راوړي، چې وروسته به جبران نه منونکى تاوان پيښ کړي»

۱۵ماخذ : دمحمود عباسي اثر ((الله)) ۱٦۹مخ

يو علت يې له دين څخه د خلګو نه اګاهي وه او په دوهم اړخ کې د داسې منافقانو د منافقت اجرائت وه، چې د پولوس په وينا د خپريدونکي دين سره يې مخلصانه علاقه نه درلودله او قسطنطين يې ددې ناپوهۍ د لومي ښکار باله هغه داسې څرګندوله: « هغه د ژوند په جريان کې يوه ناحقه لاره نيولي ده،چې د ژوند په وروستيوکې څرګنده سي» هغه دين ته کومه اعتنانه کوله او د ژوند وروستي کلونه يې په بي دينۍ کي تېر کړل.

که څه هم په دا وخت کې عيسويت دومره پياوړی سوئ وو، چې هرعيسوي ته د لاري مشال وو او د قدرت تر ګديو يې رسولئ وو ،خو پردې ونتوانېدی، چې د عيسوي اروپا واك پخپل لاس کې واخلي او خپل پخواني هدف يعنې د بت پرستۍ نظام را منځته کړي (( د پولوس واك ته نه رسيدل ددې لامل سوه، چې د عيسويت او بت پرستې له ګډون څخه يو نوی دين په جود راوړي)) عيسويت او بت پرستي يو له بله سره همنظره سول،هغوی هم د مسيح (ع) مجسمې د مکې دمشرکينو غونډي دخپلو ځانونو معبودان ګرځولي وه.

د اسلام او عيسويت تر منځ هم ډېر تفاوت په دې خبره کې موجود دي، چې اسلام په قطعي ډول د خود

پرستۍ مفکوره نه منې. واك ته د رسیدو سره سم نومـوړي واکمـن، چې يـوازي يې د پیسو د بنـدگۍ پـر ثـروت بانـدي عقده درلـوده. په دې وخت کې يې دې ته اړتيا نه درلـوده، چې د کـوم مـذهب لاره ونیسـي هغـه د خپـل سلطنت د ساتني او سـرور زيـاتوني لـه پاره حتـي د عيسـويت او يهوديت په يو والي چنداني باك ونه کړ. هغه يو والى چې د يهوديت او عيسـويت تـر مـنځ بايـد راغلـي واى تيـر سـو. کـوم اثـر يې پاتـه نـه سو کنې عيسـويان اميـدوار وه، چې يـوه داسـي پيښـه بايـد وسـي چې ((تـورات او انجيـل يـو ځـاى والـى))د يـوې تعليمـي برنامي پـه لـړ کـي يـو مـنظم او نـوي رنـگ راوړي او پـه دې سـره هغـه وروستي خرافات او چټيات د ديـن د سـاحې څخـه ووزي، چـې د بـت پرسـتۍ او نفـس پرستۍ څخه يو پاك مذهب را منځته کوي))[16]

څـه ډول چـې د عيسـويانو غوښـتنه وه نـوى مـذهب پـه هغـه ډول د بـت پرسـتۍ څخـه مصئون وي پاتـه نـه سـو . د روان عيسـويت پـه مـذاهبوکي د ځـان پرسـتۍ او ځـان پـالني دا سـتانونه پاتـه سـول . وروسـته يـې د خپـل منځـي شـخړو رنـگ واخيسـت او پـه پايلـه کـي سياسـي ،نـژادي ټکـر لـه ورايـه پـه کنبـي وليـدل سـو . دپيروانـو پـه افکـارو کـي يـې د واقعيـت

[16] ماخذ : مولنا سيد البوالحسن ندوي ((دمسلمانانو عروج او زوال ))۲۴۱-۲۴۲مخونه

او حقيقــت پــالني پــه عــوض د سياســي تغيراتــو اهــداف را ښــكاره ســول . پــه عقايــدو كــي د سياســي تغيراتــو پيلامــه كښېښول سوه.

«الفـرد بتلـر» پخپـل تـاليف سـوي كتـاب فـتح العـرب المصـر كـي ليكـي.:((پنځمـي او شـپږمي مـيلادي پيـړۍ د مصـريانو او روميـانو تـر مـنځ د ټكرونـو وخـت و)).د وهلـو او ټكولـو دغـه اور د نـژاد او مـذهب تـر مـنځ لـه اختلافـه راپورتـه سوي وو، چـي مـذهبي ټكـر يـې ترنـژادي ټكـر ډېـر زيـات وو پـه دې وخـت كـي د مـذهب (Monotheists) او شـاه پرسـتانو تـر مـنځ لمـړۍ ډلـه، چـي لـه نامـه يـې څرگنديـدل د مـذهبي اصـولو پـه بـر پايـه كولـو سـره د يـوې شهنشـاهۍ پلويـان وو دوى بـه ويـل چـي عيسـى(ع)د جـامع متضـادو او مختلفـو صـفاتو لرونكـي وو مصـريان«د يعقـوبي عقيـدې پيـروان» خپلـي عقيـدي تـه يـې تـردې سـخته تـرجيح وركولـه تصـور يـې تـر تحليـل لـوړ وو . «ټهـامس ارنلـډ»پخپـل تصـنيف( عبدالسـلام)د مـذهبي او سياسـي اختلافـاتو پـه لـړ كـي ځينـي نـا اټكلـه ترميمات، بدعتونه او فضيلتونه په مسيحيت كي ليكي:

((قسـطنطين د اسـلامي فتوحـاتو څخـه يـوه پيـړۍ تـر مخـه د رومـي اپراطـورۍ پرجوړېـدو برلاسـي سـوئ وو، ولـي د امپراتـور ترمړينـي وروسـته د رومـي امپراطـورۍ يـو والـي دړي

وړي او دا ناممکنــه ســوه چــي یــوه متحــده مفکــوره او مــنظم استحکام دي پاتــه ســي، ترڅــو پــه بیلابیلــو مرکزونــو کــي د عیسویت واکمنی اړیکي یو له بله سره وتړي))

((تــر کومــه ځایــه، چــي پــه«هرقــل» پــوري یــې اړه درلــوده ، هغــه پــردې ونتوانیــد، چــي شــام «اوســني ســوریه»دي پــه ځــان پــوري وتــړي، د یــوه ښــه مرکزیــت د جوړیــدو لــه پــاره ددې پــر ځــای چــي د مشــورې لاره یــې نیــولي وای، پــه عــوض یــې د ملــك الطــوافي لار ونیوله. دې کړنــي د ســیمي ټوټــه ټوټــه کېــدو تــه زمینــه برابــره کــړه . تــردې وروســته یــوازي د خلګــو د تیــر ایســتلو لــه پــاره پــه مــذهبي احساســاتو، د ملــي حاکمیــت چــوکۍ اشــغال وه. هرقــل د خپلــې دې اشــتباه د مخنیــوي لــه پــاره دینــي عقایــد داســي تعبیــر کــړل، چــي ده تــه یــې ډاډ ورکــاوه، چــي د متحــاربو قووتونــو تــر مــنځ بایــد موانــع پــه وجــود راســي، هغــه عنــاد، چــي پــاڅون کوونکــو د رومــن کــاتولیکو پــه وړانــدي درلــود د عیســویان یــې د کلیســا او عامــه حکومــت پــه وړاندي د مرکز جوړولو له پاره تر پایه سره یو نه کړل))

## دفطرتونو تجمع

پــه ۴۵۱ مــیلادي کــال کــي شــوري کالیــدن اعــلان وکــړ، چــي د عیســی(ع)په ذات کــي پــوره فطرتونــه راجمــع ســوي دي، یــو لــه دې دوو څخــه الهــي فطــرت او

دوهم يې انساني فطرت دی پس له دغه جوړښت څخه دوه جلا جلا خاصيتونه بيله کوم تغير او تبديله باقي پاته سوي دي، چې د مسيحانو په اصطلاح په يوه کالبوت (جسد) کې سره يو ځای دي، چې يو له بله نه سره ليري کيږي. له دې دواړو اقنامو څخه يو د الله« العياذ بالله» زوی او بل روح القدوس دی.

## ديعقوبی فرقې غبرګون

يعقوبي فرقې له دې اعلان سره سرسختانه مخالفت وکړ هغوی په دې عقيده وه،چې داد اقانيمو مجموعه ده،چې په هغه کې ټول انساني صفات سته،ولي نه سره ويشل کيږي، بلکې يو مرکب صورت يې په وجود راوړی دی. دکاتو ليکو او يعقوبيانو ترمنځ دې اختلافي ټکر دوې پيړۍ جريان پيدا کړ.

## دهرقل مجبوري

د يعقوبيانو ډله په مصر ، سوريه او د بازنطيني د سلطنت څخه د باندې يو پياوړي قوت سو . د روم واکمن هرقل هم د يوه مصلحت پر بنسټ د دوی مفکوره پلې کړه اعتراف يې وکړ، چې مسيح(ع) د همدې يوازني خاصيت لرونکی دی. دا خبره هلته وويل سوه چې د عيسی(ع)په

اړونـد د هغـه د بقـا مفکـوره پـه دوو فطرتونـو کـې خپـل اوج تـه رسیدلې وه.

(( دا محطاطانـه حرکـت يـې وروسـته لـه برخـورد سـره مـخ او بيـا وروسـته پـر هرقـل تورولگـول سـو چـې هغـه د خپـل واک د ترلاسـه کولـو لـه پـاره بـې دينـۍ تـه مخـه کـړې ده . ملحدسـوی دی نومـوړئ د عـذاب مسـتحق او بايـد سـزا ورکـول سـې د انسـانانو لخـوا پـه مسـيحيت کـې د انسـاني نظريـاتو گـډون دا پايلـه ورکـړه، چـې ريښـتوني مسـيحيت يـې پـه خرافـاتو بـدل او لـه بـديو سـره يـې مـخ کـړ او د دريـم ځـل سياسي غلبې تر هجوم لاندې راغلی.

ترهغـه وروسـته بيـا مسـيحي ديـن د نـژادي تحريـف پـه نـوم د مسـيحيت پـه عقيـده کـې لـه سـره د ترميم سـره مخـامخ سـو .د مسـيحيت د دې دواړو گروپونـو تـر مـنځ منځگـړو بيـا پـه عيسـويت کـې عجيـب او غريـب نـوي نقـاط شـامل کـړل، چـې نـه يـوازې د انسـاني فطـرت سـره يـې اعتقـادي اړخ نـه نيـاوه، بلکې له دين سره يې پوره ټکر درلود))

## دعيسويت وروستی سرنوشت

کلـه چـې پـه عيسـويت کـې د انسـانانو لخـوا عمـومي او خصوصـي تحريفـات يـو پـه بـل پسـې داخـل سـول او هـر چـا مسـحيت د خپـل قضـاوت پـر پريکـړه ترتيـب کـړ پـه عيسـويت

کي داسي څه پاته نه سول او داسي يو استعداد يې نه کړ جوړ، چې د هغه په رهبرۍ کائنات له خپل حقيقت څخه، له حقيقت سره د هغوی علاقه له خپل خالق سره ولري، حقيقت، د هغه صفتونه، هدف او غايه د الله ﷻ و بشر لره تعبير او تفسير کړي.

دا هغه عبارتونه دي، چې بايد ارزښتونه يې په صحيح ، بشپړ اوسالم ډول بقا وممومي او پرهغوی د انساني ژوندانه نظام حاکم کړي د معاصر عيسويت په شمول دې ټولو کړو ته عاجز دين وبلل سو .

## لا دلته نه دريږو

خبره بايد يوازي د مفکورې پرخرابۍ پاته نسي دې اوضاع وروسته داسي يو صورت ونيوئ ، چې د آينده اشتباهاتو او تيروتونو له پاره يې زمينه برابره کړه کليسا کوښښ وکړ چې د عيش او نوش له پاره ټولي هغې لاري چاري وټړي کوم چې د روما د سلطنت په حکمرانۍ او د بندګي مسيحيت په غيږ کي خپل اوج ته رسېدلي وې. غربي عالم درپير پخپل کتاب «د مذهب او ساينس تر منځ جګړه» کښي داسي بيان کړيوه .

((که څه هم د دې کتاب فاضل مصنف د کتاب اصل نوم (الدين والعلم) راوستي دی،خو د نوموړي کتاب

اردو ژبـاړن دا کتـاب د (معرکـه مـذهب اورسـاینس) ذکـر کـړي دی . د نومـوړي کتـاب پـه پـای کـي یـې د کتـاب نـوم پـه انګلیســـي ژبـــه History of the conflict between religion and science کښلی دی.

(( څـه ډول چـي ښـائیدل رومـي دولـت پـه هغـه ډول پـه نظـامي او سیاسـي ډګـر کـي پیـاوړی سـو، چـي د مـذهبي او عمرانـــي حالـــت وروســـته یـــې بـــرعکس اخلاقـــي حالـــت تـــر وروســـتی ککړتیـــا پـــوري رســـیدلئ وو. د رومـــا د ســـیمي د اوسیدونکو عیش پرستي په نهایي درجه کي وه.

هغـوی پـه دې مفکـوره وه، چـي د انسـاني ژونـد کـړه وړه بایـد د نهـائي عـیش او نـوش تـر سـرحده ورسـیږي تـر څـو پـاک سـي پـاکي د یـوه نمکـدان پشـان ده ،چـي سـترخان تـه نیکمرغـي راوړي . کلـه چـي د نفـس د نیکمرغـی سـره څـوك ځـان عیـاروي، نـو د اعتـدال او پـاك نفسـي ښـتن بایـد وي، خـو د هغـوی د ښـکلا لـه پـاره بـه یـې پـر سـترخان طلائـي غابونـه « قابونـه» او ظـروف، چـي پـه جـواهرو بـه نقـش سـوي وه ایښـوول. د دوي پـه چـوپړ کـي و لاړو رومـي ګُلرخـانو، چـي طلائـي ګېنـې بـې پـه لاسـو اغوسـتي او سـرونو را ځړولـې وې، د عصمت له طلائي نیکمرغی به آزاده وه.

دوی تــه پــه خــدمت کـــي وه ، دوی بـــه یـــې د مخمــورو مخــورو ســترګو او جســمي مدهوشــۍ او خمــار څخــه خونـد اخیسـت . ښـکلي جـامې، لـوی او حیرانـوونکي ننـداره تونونـه بـه د عیاشـیو لـه جلبوونکـو ځـلا وو پـه درلودلـو د رومـا د اوسـیدونکو پـه خـدمت کـي شـپه او ورځ خـلاص وه . کلـه کلـه به پـه دې میلـه ځـایونو کـي وحشـي غوایـان د پهلوانـانو پـه څیـر پرمیـــدان پـــه زور از مویلوســـول، چـــي تـــر څـــو د یـــوه د مرګي ځای به یې ور هوار نه کړ،لوبه نه ختمېدله.

دوی داســي احسـاس کـاوه، چــي نــړۍ د پرسـتش او لمانځــه ځــای او یــاهم ښــکلا او تجمــل ځــای دی، نــور بـل ځـای نـه سته بیلـه دې د روم لـه سیمي څخـه وي،لهـذا د همـدې سـرمایه دارۍ څخـه کیـدای سـي، چـي پـه هـر وخـت او زمـــان کـــي د ســـتونزمنو، غریبـــو او مســـکینو خلګـــو لـــه مجبوریتونـــو کـــار واخلـــي. د رژیـــم د ناخوښـــو کســـانو د ملکیتونـو مصـادره کېـدل، تـر حـد زیـات محصـولات اخیسـتل، لـه بیلابیلـو ایـالتونو څخـه د راتولیـدو پـه مصـرف د جګړییـزو تجهیزاتـو رانیـول د رومـا پـر سـیمه د هغـوی زورګیـرۍ او پیـاوړ تیـا د هغـوی نښـي نښـاني وې، همـدا لامـل وو، چـي د رومـا د دولت لـه ظـاهري ښـکلا څخـه بـل داسـي نـوي څـه نـه وه . دغـو پلوشـو ، چـي د یونـان پـه قـدیمي مـدنیت کـي یـې ظهـور کـړی

او يــو پــه بــل پســې موښــتي وې. پــه همــدې زمانــه کــي د رهبانيـت)) وحشـي ځپـه راغلـه، چـي تـر رومـي بـت پرسـتۍ يـي انسـاني ټـولني تـه زيـات زيـان ،اړاوه . دا يـو داسـي ډول پديـده ده ، چـي هـم يـې د نفسـي خواهشـاتو لـه کمندسـتان سـړی ايسـتئ او هـم د اخـرت پـر ورځ انسـان شـکمن کـاوه، چـي نـه د انســاني ژوندانــه لاره پکښــي وه او هــم يــې پــه دنيــا کــي لــه انساني کرامته څخه

بـس يـوازي عابـد انسـانان پـه کليسـاوو کـي د راهبـانو غلامــان گرزيــدلي وه . هغــه انســاني اســتعدادونه او علمــي قوتونـه چـي غوښـتل يـې انسـاني تـه د اللـه ﷻ لـه لـوري د مځکـي د خلافـت دنـده واضـح او روښـانه کـړي، د انسـانيت د بقـا لاره ثابتـه کـړي .لـه هـر طرفـه د انسـانانو د تنـدي د خولـو پـه تويولـو او مټـو پـه زور مځکـه ابـاده او سمسـوره ورگرځـوي . داســي نــه وســول ،بلکــی د ځــان تحميلــوني لــه پــاره يــې د بغـاوت لاره غـوره کـړه. هنـري او د فضـيلت وړ امتيـازات يـې د رهبانيـت پـه نـوم يـاد او د اللـهﷻ د خاصـو نمائنـده گـانو پـه توگـه ټولـه ځانتـه وگرځـول .انسـانان يـې لـه عقيـدتي مـدني اړتيـاوو پـه بهانـه محـرم او وړتـول شـيان يـې انسـانيت د نـاروا توکـو پـه نـوم ابـلاغ کـړل څـه ډول چـي ښـائيدله د اللـه ﷻ لاره

يــې و بندگانوتــه ونــه ښــوول.د انســـاني ژونــدتوازن يـــې ورگډوډ کړ

رهبانيـت د کـومي سـوکالۍ لـه پـاره لاره هـواره نـه کـړه او نـه يـې کـوم تـوازن وسـاتى ،بلکـي تـر ماضـي يـې زياتـه گـډوډي را منځتـه کـړه . د «لگـام او گسـته» ډلـو تـر مـنځ چـي عبـارت لـه ((رهبانيـت د مخکښـان او رومـا عـيش پرسـتان)) ، ځخـه وو ډېـر بدلونونـه را منځتـه کـړل او عيسـويان يـې يـو پـه بـل سـره ووهـل رښـتيا خبـره داده، چـي دا دوې ډلـي د فطـرت لـه سـړك ځخـه اووښـتي وې. يـو پروفيسـور پخپـل اثر((تـاريخ اخـلاق اروپـا)) کـي د مسـيحيت پـه اړونـد داسـي شرحه ورکوي[1].

((انحطـاط او اخلاقـي فسـاد و خپـل لـوړ حالـت تـه رسـيدلى وو ، د دربـار عـيش پرسـتي، د دربـاري اراکينـو د غـلام بچگـانو ډېـر ښـت، د درباريـانو د لبـاس سـاز او سـامان د زيوراتـو او گينـو جـوش پـه مسـتي سـره شـرنگېدى دا هغـه وخـت وو، چـي لـه يـوه اړخـه د نـړۍ خلـگ د راهبـانو ځخـه تـر پـوزي وه او پـه بـل اړخ کـي د دربـاري حکمرانـانو تـر سـختو ضـربو لانـدي تپيدلـه. پـه ښـارونو کـي، چـي د مسـيحي زاهـدانو او راهبـانو حکمرانـي وه عياشـي پـه نهايـت کـي قـرا ر درلـود[2]پـه دې ترتيـب، چـي رهبانيـت د کليسـا ځخـه سـر چينـه اخيسـته

او هغـه تصـور چـي انسـانيت تـه نيكمرغـي وركولـه دكمينـۍ خواتـه كنـاره سـوئ وو. حـال دا چـي ديـن پخپلـه لـه دوی ځخـه بري الزمه وو ))[17] .

د ديـن پـه وړانـدي د رهبانيـت فطـرت د يـوه يـاغي قـوت پـه توګـه بغـاوت كـړی وو . همـدالامل سـو، چـي ديـن لـه دنيـا ځخـه بېـل او د دواړو تـرمنځ تفكيـك پـه وجـود راغلـی وو، پـه يـوه اړخ كـي ديـن او د هغـه پـه وړانـدي راهبـانو ځانتـه مسـتقلي لاري درلـودې وروسـته د كليسـا لـه لـوري يـو بـل مصـيبت هـم را منځتـه سـو : راهبـانو بـه ويـل چـي كـه تاسـو د دنيـا لـه لـذتونو خونـد وانـه خلـی او لـه هغـوی ځخـه ګټـه پورتـه نـه كـړی تاسـو جنـت تـه نسـي تـلای لهـذا زمـوږ دنـده ده، چـي تاسـو جنـت تـه جـوړ كـړو، خـو مـوږ داسـي نـه وايـو، بلكـي مـوږ وايـو چـي د مشـروع ژونـدا نـه د تـر سـره كولـو پـه سـرليك د نهـائي عياشـۍ پـر لـور بايـد انسـانان ورسـول سـي .دې كړنـي د ډېـري بـدي فحشـا عكاسـي كولـه((در پيـر)) پخپـل اثـر«معركـه مذهب اور ساينس»كي كاږي:

«دا صـليبي او د رهبانيـت د مـذهب نظـام پـه هـر ډول د انسـاني كرامـت لـه پـاره ضـرر وو، خـو نـوو مـذهبي اساسـاتو د روحانيـت پـه چوكـاټ كـي دا نظـام نيـولی وو »

[17] ماخذ : مولنا سيد البوالحسن ندوي ((دمسلمانانو عروج او زوال ))

ډېر وخت نه وو تير سوی، چي يو ځل بيا په مذهبي ځايونو کي فحاشت او عياشي و هغه خپل لوړ حال ته ورسيدل .

راهبانو يې په وړاندي هيڅ مخالفت ونه ښودئ حتي د عياشۍ په رقابت کي راهبان تر خانانو او سرمايه دارانو هم لوړ وه پردې اساس ځيني داعيان يې په وروسته کي د دا ډول کړنو مانع و گرځيدل او د هغه هدف په لټه کي سول، چي په ښکاره د مسيحيانو تر منځ ورور ولي وه هغوی د مراسمو په تجليل د شهيدانو او اولياؤ د لمانځنو غونډو بنديز ولگاوه. هغو ويل: په دې ورځو کي د ياد غونډې په نوم بيله فسق او فجوره به بل څه جوړ سي؟

**د جنت ټکټونه**

پورته کړنو د اخلاقي فساد په را منځته کيدو سره اتهامات په حقيقت اړولي وه ((سينټ جوړوم )) Jorum په دې اړه وايي:«ماته د کليسا په غير کي د راهبانو او شتمنو په عياشي، چي دوی تر سره کوله حيا راتله، پخپله د کليسا پاپ د جرايمو مر تکب وو،هغه ته مال او دولت دواړه دومره اړين وه، چي لوړ منصبونه به يې د همغو منصبونو د پيسو په اندول پر شتمنو پلورل، په جنت کي د ټاکلي جايداد قبالې، له الله ﷻ څخه د ملوثو بندگانو د مغفرت

اسـناد، د قـانون د مـاتولو لـه پـاره جـواز نامـه او تصـديق نـامې يـې پـه اسـانۍ خلگـو تـه د پيسـو پـه بـدل کـي ورکـولې دا مذهبي کدرونه، رشوت اخيستونکي او سود خواره وه .

د نومـوړو خـراج تـر دې حالتـه ورسـيد ، چـي د خپـل پـاپ والـي د ساتني لـه پـاره «انـو سـينت»اتـم عيشـش خپـل د کشيشـۍ تـاج پـه گـروي ورکـړ همـدا ډول د «کشـيش »ليـود په اړه ويـل کيـږي، چـي هغـه د ځـان د خـرڅ لـه پـاره د درو تنـو کشيشـانو مصـرف حوالـه کـړ. تـر څـو د مخکـي کشـيش کـوم ميـراث، چـي تـر شـا پاتـه وو هغـه پـه مصـرف ورسـوي . [18]نومـوړي د خپـل راتلـونکي ځـای ناسـتي عوايـد هـم تـر مخـه له خلگو واخيستل او هغه يې مصرف کړل .

ويـل کيـږي چـي د فرانسـې هيـواد د هغـه وخـت ټولـو عوايدو [19]د کليسا وو د راهبانو له پاره کفايت نه کاوه

دريپر،چـي د کومـو جـوړو سـوو اسـنادو او فرامينـو د توزيـع خبـره کـوي هغـه عمومـاً پـه ټـولنيزو غونـډو کـي ورتـه ورکـول کېـدلې. دا ډول پـر شـوره او رنگـين محفلونـه او غونـډې وخـت پـر وخـت جوړيـدلې. دکليسـا د ((مقدسـو غوښـتنو)) لـه پـاره بـه د کليسـا تـاريخ پـه نـوم يـا دېـدل، چـي د دوولسـمو

[19]ماخذ : مولنا سيد البوالحسن ندوي ((دمسلمانانو عروج او زوال

تصـويباتو کتـاب پـه پروتـو کولونـو کـې يـې دا ډول موضـوع ديـوه متن په ترڅ داسې روښانه کيږي .

(د نـــن ورځـــې مجلـــس مغفـــرت تعليمـــات خپـــل وروســـتې پـــړاو تـــه رسـوي او ويـــل کيـــږي، چـــې عيســـی(ع)دې کليسـا تـه دا صـلاحيت ورکـړی او دا يـو اسـماني امـر دی چـې کليسـايي پلـې کـوي. دا فرمـان امـر کـوي: د مسـيحيت پيـروان بايـد خپلـو ځـانونو تـه د نجـات او خلاصـون لـه پـاره د کليسـا پـه چاپيريـال کـې د کليسـا د ښـتنانو لـه پـاره سـاتل سـوي وي .هغـه ځـوك چـې دا امـر نـه منـې د الله ﷻ لـه مغفـرت څخـه محـروم دې)) کليساغوښـتل د پخوانيـو اوامـرو پـه اسـاس رفتـار وکـړي او پـه کليسـا کـې کـوم خنـډ واقـع نسـې.هغه فـرامين، چـې د مغفـرت پـه موخـه پرسـاده لوحـه خلګـو پلـورل کېـدل يـو ساری يې په لاندې ډول دی:

«ای فلانيه!

زمـا اللـه ﷻ دې پرتـا رحـم وکـړي ، هغـه تکليفونـه، چـــې تـــا دخپلـــې تخطـــۍ پـــه نتيجـــه کـــې ليـــدلي تاتـــه دې يـــې در وبخښـــې ، زه د هغـــه د اســـتازې پـــه توګـــه ســـتا ټـولې تيـر وتنـې در معـافوم، ټـولې هغـه تيروتنـې او سرشـوخۍ، چـې دې د کليسـا پـه وړانـدې کـړي زه يـې پرنيسـت حسـابم ، هغـه ګنـاه، چـې دې د لـوی پـاپ او يـا د هغـه د نائـب پـه

وړاندي کړي ساقطوم يي، په خلصه توګه هر هغه ناروا څه، چي دي تر اوسه کړي در ومي بخښل.

څه ولاړسه!

ټولي هغه لاري، چي د ژوندانه د خوښيو له پاره دي کړي او د دين پر لاره کي دي بغاوت کړی وو در ښځه اړوم، چي ستا او د دين تر منځ يې فاصله رامنځته کړې ده . ستا پر سر بيا د سپيڅلي کليسا د طهارت او پاکی تاج ږدم . ستا تر مړيني وروسته به ټولي د خطا او دوږخو دروازې ستا پرمخ بندي وي .

د جنت ټولي دروازې تاته له همدا نن ورځي پرانيستي دي که تر ډېر ه وخته تاته مرګ رانسي بيا هم داده مغفرت فرمان به ستا سره باقي وي تر کومه ځايه، چي تا ځان ور سپارلي دی .

د ((روح القدوس او مسيح زوی او کليسا د پلار)) په امر

که موږ پردې خبره له سره ليدنه او کتنه وکړو، چي د کليسا څښتنانو او کشيشانو څه ډول د خلګو د مالونو د لوټولوله پاره دين عنوان کړي وو. د مننې او زغم وړنه دي، دين د داډول چلونو او فريبونو پاك دي.که پر عياشيو او فحاشيو او د مغفرت پر فرامينويې غور وسي،څرګنده به سي، چي په اروپا کي دين او سياست څومره سره بېل دي.

خبـره پـردې ځـای نـه ختميـږي چـي د شـاهانو او کشيشـانو پـه پلـوي د خلگـو تـر منځ د نانـدريو ټکـر پيـل سـو . دې ټکـر د ديـن او اخلاقـو پـه عـوض نفسـي خواهشـاتو او شخصي اقتدار غوښتني ته نوره هم لاره هواره کړله

((پـه يوولسـم مـيلادي قـرن کـي د کليسـا او شـاهي در بـار تـر مـنځ فاصـله پـه وجـود راغلـه او وروسـته هغـه د ټکرونـو تـر کچـي ورسـيده ،پـه سـر کـي کشيشـان پـه دي جگـړه کـي بريـالي وه . د نومـوړو وقـار او اقتـدار تـر دې حـده ورسـيد، چـي شهنشـا څلـورم هـانري پـه ۱۰۷۷ کـال کـي دا ومنـل، چـي د کانوسـا پـه کـلا کـي دي د کشـيش«مـذهبي مخـکښ»مخـي ته په ډېر ذلت او خواري سره حاضر سي.

کشـيش هغـه نـه قـبلاوه ،خـو د قـوم مشـرانو هغـه پـه ډېـر و ننواتـو پـه ومانـه، هغـه يـې خپـل حضـور تـه پـه واړه حالـت کـي ور وغوښـت، چـي وريښـمني جـامې يـې پـه تـن وې لخـو پښـي د پـاپ پـه وړانـدي ودريـد او د کشـيش پـه لاس يـې توبـه وکښـله، پـه دې سـره د دوی پـه قـول د نومـوړي گنـاه ورژيدلـه د اقتـدار پـر سـر دکشيشـانو او سـلطنتي واکـدارانو تـرمنځ تـر دې وروسـته بـه کلـه کليسـا شـاهي دربارتـه چلـنج ورکـاوه او کلـه بـه شـاهي دربـار کليسـا تـه چلـنج ورکـاوه تـر څـو ،چـي وروسـته شـاهي دربـار پـر کليسـا بـر لاسـی

سو[20].«سوسنه سلیمان» پخپل تالیف کړي کتاب کي لیکي:

«په ۱۲۴۵ میلادي کال کي د پاپ« انوسیټ» په امر د فرانسې په لیون کي «۱۳»سمه لویه غونډه را وبلل سوه په دې اجتماع کي پاپ د فراسنې پاچا «فدریك» له واکه گوښه کړ، ولي پخپله د فرانسې مرکزي کلیسا د دې پریکړې په وړاندي اعتراض وکړ او هغه یې منظور نه کړ؛ په کوم ډول، چي کلیسا د خپل ابتکار په ښوولو سره خپل اقتدار له شاهانو او امیرانو اخیستی وو پرخلگو یې بشپړ حاکمیت درلود، دې واك د خلگو مالي خساراتو ته لاره هواره کړې وه».

## د کلیسا په وړاندي بغاوت

دا تاوانونه مخامخ د خلگو څخه اخیستل کېدل او کلیساته د تعاوني مال په نامه ورکول کېدل خلگ له دې حالته تر پزې راغلي وه . له بله اړخه هغه حاکمان، چي له کلیسا څخه ناراضه وه د خلگو د راپارولو له پاره یې دا یو ښه وصیله وبلله او خلگ یې په یوه او بله بهانه د کلیسا په مقابل راوپارول هغوی ټولي په نامه دیني ځیرې رسوا او د نه قبلیدونکو اعمالو څخه یې پرده پورته کړه .

[20] ماخذ : مولنا سید البوالحسن ندوي ((دمسلمانانو عروج او زوال ۲۵۱مخ))

هغــه رذالتونــه، چــي د  خپلــو خواهشــاتو د ســړولو د پـاره د ظـاهري  وقـار پـه ګېنهـه نومـوړو پوښـلي وه  و خلګـو تـه ښکاره کړل. هغـه وحشـي او وژونکـي جـرم، چـي پـه اروپـا کـي را منځتــه ســوئ  وو  دا وو، چــي د دیــن او سیاســي نظــام تــر مـنځ  یـې  بیلتـون پـه وجـود  راوړ بلآخـره ددې سـبب سـوه چـي اعتقادي مفکوره له انساني نظام څخه بیله کړي.

بــل لــوی جــرم غریبــانو د ځــان او مســیحیت پــه اړونــد دا وکـړ، چـي تـر څـو  اللـهﷻ د دوی پـه کړنـو کـي تغیـر نـه وي راووسـتی دوی بـه دټولـو دینونـو پـه وړانـدي بغـاوت کـوی کلیسـا د انجیـل مقـدس د تشـریح او تفسـیر حـق یـوازي ځانتـه ورکـړ او نــور ټــول هغــه روښــان  فکــران او علمــي کادرونــه،چي  د انسـانیت پـه هـر اړخیـزو چـارو کـي بـه برلاسـي وه  ددې کړنـي څخه  منع او د تفسیر او تشریح واك  یې  ځیني واخیست

وروسـته تـردې کـاریې  ځینـي  نـوي ټکـي پـه مسـیحیت کـي ور داخـل ، چـي عـامو وګـړو تـه د هغـو کـول او منـل ممکـن نــه وهغــه خبــري چــي د« تهمــاس ارنولــد»پــه هکلــه مــا ددې کتـاب پـه مخکنیـو پاڼو کـي ذکـر کـړې. ددې خبـري ثبـوت دی وروســته یــې  نــوري ترڅځــي  هــم مســیحیت تــه  واچــولې او  هغوی  ته  یې  د «غشاء رباني» نوم ورکړ .

ددې ډول بدعتونو په وړاندې«مارتن لوتر» او نورو پاڅون وکړ هغو ویل: «دا نوې خبره ده او په انجیل کې د هغې کومه یادونه نه ده سوې» ډیرو مسیحیانو هم له همدې کبله په هغه کې ګډون ونه کړ ددې موضوع کیسه په لاندې توګه ده:«مسیحیان د«السیتر» په ورځ ډوډۍ خوري، شراب څښي دې خوراک او څښاک ته«رباني خوراك»نوم ورکوي.

د کلیسا د پاپایانو په قول دا خوراك او څښاك د عیسی(ع)په بدن کې جذبیږي . دکلیسا ټیکه دارانو عام خلګ په دې امر مجبورول، چاچې به سر غړاوه هغه به یې له عیسویت څخه شړئ او د دوی په اصلاح د الله ﷻ له مغفرت څخه یې محروم کاوه .

همدا ډول کلیسا د دې ډول خرافاتو او اوهامو له بلې ډډه ونه کړ، بلکې خلګ یې ددې څخه هم منع کړل او ورته ویل یې چې د دې موضوع د ثبوت له پاره د اللهﷻ کتاب مه پلټې او یا هم ددې موضوع په اړوند شرح او تفسیر مه غواړئ . تر دې وروسته د نوموړو له لاسه د کائناتو په اړوند په ژوند کې ډ یر خرافات را منځته سول، هغه مسائل یې په انساني ژوندانه کې د تاریخ او جغرافیې د مضمون په مفهوم طبعي مفکورې و ګرځیدلې، چې ټوله

کُلي او جزوي خرافات وه او له هغوی څخه يې هغو ته د مقدسو احکامو په نوم لوړ ځايونه و ټاکل د هغوی په اړونديې تصحيح او تجربه يو ناروا عمل و بالله او نا مشروع يې و ګرځول .

همدا وو چې دا درناکه پيښه«دکليسا له اوامرو څخه د روشنفکرانو سرغړونه» د يوې خطا مفکورې غوندې د کليسا لخوا د خلګو د حماقت سبب سوه. فوراً دا تجربه سول، چې که وي که نه وي دکائناتو علوم رښتني دي، چې د ژوندانه په لاره کې خداﷻ تعالي په هغوی کې د فکر کولو ، معلوماتواخيستلو او د هغوی عملي رويکارولو له پاره انسان ته پوره آزادي ورکړې ده ،ځکه اللهﷻ مذهب ته دا امر نه کوي، چې د ديني علومو تر څنګه د طبعي علومو په وړاندې ممانعت وکړي .

دلته هم غواړم، چې د«مولنا سيد ابوالحسن علي ندوي رح» له ګټور اثر څخه څه اقتباسونه ستاسو ښاغلو سره شريک کړم . تر څو ښکاره سي، چې د دين او دنيا تر منځ د کليسا څښتنانو څومره احمقانه بيلتون را منځته کړی دی. د دين د څښتنانو اشتباهو خپله دوی د برمرغۍ تر پولو ورسول. ځانونه يې د دين نمائنده ګان بلل ،خو هغه افواهات او درواغ يې په انجيل کې ځای

کـړل، چــي يـوازي يــې د هغـه وخـت او زمـان اړتيـاوي پـوره کـولې ، البتـه دا تحقيقـات، چـي پـه هغـه کـي يـې ځـای کـړي وه پـه تـاريخي ، جغرافيـائي اړخونـو او طبيعـت پـوري يـې تـړاو درلـود«علـم او پوهـه تـر هغـه پـړاوه رسـيدلي وه، چـي يـوازي پـه هغـه وخـت پـوري اړه درلـوده . پـه حقيقـت کـي دا يـو انسـاني او انتهــائي پوهــه نــه وه، چـــي پــه تــدريجي ډول انســاني او انســاني فکــري تکامــل د نومــوړي علــم پــه برکــت تــر پړاينـــي ورسـوي، بلکـي د نومـوړو دا کړنـه مؤقتـه وه، چـي دهمـدې لنډ مهـال کړنـي پربنسـټ يـې ځانتـه پايـداري نـه سـوای درلـودلای هغــه بــه ډيــر وخــت د ريگوغونــدي کلــه يوځــای اوکلــه بــه بل ځای ته نقليدو له او بيا به د باد په مرسته سره رژيدله»

د کليســاد اربابــانو ډيـر خنــدوونکی نيـت او هــدف دا وو ،چـي د ديـن پـه عظمـت کـي خپـل ځانونـه تـر لـوړ منزلـت او مقامـه ورسـوي او خپـل کريـډت پـه ټولنـه کـي زيـات او د لـوړ محبوبيــت څښــتنان ســي ،خــو داســي ونــه ســول د دوی پــر او بـال د دې لامـل سـوه، چـي د عقـل او مـذهب تـر مـنځ فاصـله ايجـاد سـي هغـه مـذهب چـي انسـان تـه د پـوهني پـه موخـه را نـازل سـوي وو.بـي ارزښـت او د مـذهب څښـتنان پـه اروپـا کـي لـه تـزل تـزل او تنـزل سـره مـخ کـړي، وروسـته يـې هيڅکلـه

عیسویت د صعود ټکي ته ونه رساوه، دا وو چي اروپا د بې دینۍ په لومه کي راګیر سوه .

د مذهب څښتنانو په مذهب پوري د نوو شیانو په تړلو سره د پخوانیو پر تعریف یوازي بسنه ونه کړه ،بلکي هغه ټول نوي شیان یې د تاریخ جغرافیې او طبعي علومو په نوم د مفسرینولخوا د مقدس کتاب څخه د ماخذ په نوم یاد آوري کړل موډرن لباسونه یې د مذهب په قبضه کي د مسیحي تعلیم په پروسه کي یې داخل کړل . پر مسیحي تعلیمي نصاب باندي د هر مسیحي له پاره د هغه منل یو جبري او لازمي امر سو د هغه تعلیماتو په پس منظرپسي یې د نورو تالیفاتو او کتابونو په تصنیف کولو او نوشته کولولاس پوري سو د بنده ګانو په راټولو سوو ماخذونو کي یې بل کوم اساسي او اسماني ماخذ نه درلود. صرف د Christian Geographyتعلیماتو په نوم یې دا مسوده ونومول او ددې مضمون پر زده کړه او منلو یې دومره ټینګار وکړ، چي نه منونکي او نه ویونکي یې کافران دي،تصادفاً دا وخت په اروپاکي د عقلیت او تعقل داسي یو اور غورځوونکي غر په خوټیدو سو، چي د تقلید ټول ځنځیرونه یې وشلول د هغه وخت ټول علما له دې قید څخه ازاد سول، ټول هغه نظرونه چي د

تـاريخ ، جغرافيــې او طبعــي علومـو پـه لـړ کـي يـې د مـذهب پـه چوکـاټ کـي را ايسـار کـړي وه د خپلـو تحقيقـاتو پـه نـوي لټــون ســره رد ســول د دلايلــو او ثبوتونــو پــه وړانــدي کولــو سره يـې پـه ډېـر جسـارت هغـوی د مـذهب لـه کړيـو څخـه د خلاصــون پــه موخــه نــوی رنــګ ورکــړ . پرپخوانيــو پديــدو بانـدي يـې دايمـان راوړلـو پـه اړونـد يـې اعـراض وکـړ او ددې اعراض پـه وړانـدي کيـدو يـې خپلـي علمـي تجريبـې خلګـو تـه وښــوولې، چــي د محشـر هـاى او هـوی يـې جـوړ کـړ او پـه وړانــدي يــې مــذهبي پيشــوايانو دکفــر فتــوی ورکــړې او د مسـيحيت د سـاتني لـه پـاره يـې د هغـو وينــي تويـول ور روا کـړل دهغـوی ملکيتونـه د چـور او تـالان لـه پـاره يـې خلګوتـه اجـازه وړکـړې. د هغـوی لـه پـاره د حکـم چلولـو او د هريـت د تثًبيـت لـه پـاره محکمــې جـوړي کـړې پاپـانو وويـل:« دهريـان بايـد د خپـل عمـل پـه سـزا ورسـيږي» دا خبـره پـه ښـارونو، کورونـو ، دوکـانونو او ځنګلونـو کـي خپـره سـوه . دې محکمـو د خپلـو کـړو د ترسره کولـو لـه پـاره پـه ټولـو ځـايونو کـي تـر وسـه وسـه وکـړ تـر دې انـدازې چـي کشيشـان بايـد د خپلـو انفـرادي محکمـــو پـــه تـــر ســـره کولـــو هـــم ازاد وي او کـــوم بـــل کشيش يې مخنيوی نسي کولای.

دا ډول محكمې يې د اروپا په سراسرو سيمو كې جوړې او په هره سيمه كې يې خپل جاسوسان وګمارل يوه عيسوي عالم پخپله دا وويل چې« دا ممكنه نه ده، چې يو څوك دې هم عيسوي وي او هم دې په بستر كې ومري»

د يوې دقيقې احصائي له مخې د مجازات سوو ملحدينو شمير تر ((۳۰۰۰۰۰))درو سوو زرو تنو پورې ورسيد. راهبانو او كشيشانو په خپلو فتواؤ ملحدين يا مرتدان په اورو وسوځول، چې يو تن يې د هئيت د علم څښتن ((برونو Bruno))هم شامل وو .

د كليسا د تصميم له مخې هغه يو لوى مجرم وو ، برونو په دې باوري وو، چې د مځكې كره ګردۍ ده او د شمسي نظام د نورو كُرو په اړه هم باور درلود، چې ژوندي موجودات ژوند پكښې كولاى سي.د كليسا محكمې ددې عالم په اړه داسي حكم صادر كړ: نوموړي بايد دكليسا لخوا داسي په نرمۍ مړ سي، چې يو څاڅكۍ وينه يې پر مځكه توي نسي . ددې حكم څخه يې هدف داوو، چې نوموړي بايد په اور كي وسوځول سي.همدا رنګه د طبيعي علومو مشهور عالم« Galila »هم په دې خبره په اعدام محكوم كړ ،هغه په دې مفكوره وو ، چې مځكه ګردۍ ده او د لمر پر محور راڅرخي .

په پایله کې د روښان فکرانو او بې مذهبه خلګو د صبر کاسه تر څنډو واوښته د مذهب پرمخکښانو یې د مرتجعینو فتوی ورکړه او د هغوی په وړاندې یې د تشدد لاره ونیوله د دې محکمې د مظالمو په وړاندې یې د انحراف د لارې پلوي کوله د ټولني او کلیسا ترمنځ دا تنفر تردې حده ورسید. کوم کسان چې مخکې د کلیسا او د هغې واکمنانو ته معتقد ا په احترام وه اوس یې د دښمنۍ او نفرت جبهه نیولې وه.

د روښان فکرانو او بنسټ پالو تر منځ عداوت او دښمني لوړ حد ته ورسیدله ،دا عداوت د دین اوپوهني تر منځ د ټکر په نوم وو . د عقل څښتنان او روښان فکران په دې باوري وه، چې د انسانانو په لاس جوړ سوی عیسویت له عقل او منطق سره سر نه خوري . لهذا اړتیا ده چې د علم او پوهې د پیاوړ تیا له پاره و پوهني ته د وفادارۍ لوړه وکړي . د روښان فکرانو په دې پیاوړ تیا سره د کلیساؤ راهبانو او د سینټ پال د پیروانو درجه بندي دخپلو تیرو ظلمونو له مخې کېدله .

ټولو راهبانو چې د چاپه اړه د اعدام فتواوي ورکړي وې د هغوی خیرې یو په یوه مخه ته دریده او تل به یې په مغزونو کې د هغو د خیرو عکسونه انځوربدله هغه

شکنجې ، کړاوونه چې نوموړو پوهانو ته يې ورکړي وې په سترګو کې يې مجسمې کېدلې، هغوی پردې تاسف او پښيماني کوله، سترګي يې شرر پاروونکي، سيني يې تنګي، تعقل او تفکر يې کرار کرار په مغزکي ځای نياوه او وروسته د خپلو دې کړونو په اړونديې په پټه ځانونه ګرم بلل، خو د راتلونکي نړۍ له پاره يې د وحشت ، نفرت او بيلوونکي مفکوره د مذهب او علم تر منځ ميراث پريښووله د راهبانو سربيره روښانفکرانو او د نوي علم پلټونکو عالمانو هم تر خپلي پوهني سر بيره دومره ژوره تحليلي او تحقيقاتي علمي سرمايه نه لرله،چې د خپل عقل په رڼا کي دين او پوهنه سره لازمه او ملزومه وبولي.

## د سپين پوستو د واکدارۍ پای

پېژندل سوي انګليس فيلسوف«برتراند رسل»ليکلي:« دسپين پوستو د لوړوالي او ځان خوښوني دوران نور پای ته رسېدلی دی . په دې خاطر، چي سرداري او مشرتوب د طبيعت له قوانينو سره برابره نه ده ، چي تر قيامته دي ادامه ورکړي ، زه په دې باوري يم. هغه فرصتونه او امکانات، چي په تېرو څلورو پېړيوکي برابر سوي وه د سپين پوستو د حکمدارۍ سره برابر وه، خو بل واري

ددې وړتیا نه لري، چې واکداري ترلاسه کړي په دوی کې یوازې روسان دي، چې د دې برترۍ چانس لا نور هم په لاس کې درلودلای سي اسیایي هیوادونه پانګوال نظام ته د بدبینۍ او نفرت په سترګه ګوري، خو دایې هیر کړي دي، چې شرقیانو په خاص ډول د روسیې اهداف یې لا تر اوسه نه دي ازمویل سوي.«خو د۱۹۸۹ کال افغان شوروي جګړې تر ختم وروسته چې روسانو له مجبوریته(٦)تنه طلا داقتصادي بحران دمخنیوي په خاطر تور بازار وړاندي کړه، دا ثابته کړه، چې سلاویان (روسان) هم دکمونیزم په پلی کولو سره نور د نړۍ دسرداري چانس نه لري، ژباړن»

په څه ډول، چې په تېرو پېړیوکي غربي هیوادونو د غرب تر استعمار لاندي ژوند کړئ اوس له دې استعماره تر پزي دي ددې استعمار څخه دبدوړلو علت یې په پالیسیو کي روښانه دی. زه په دې باور یم ، چې غربیان په اسیایي هیوادونو کي دخپل استعماري راج چلولو وړتیا نه لري، ولي داتوقع کېږي چې هندوستان خپل روابط له غربیانو سره پراخ او محکم کړي او د عربو هیوادونه ، مصر او پاکستان به دکمونیزم غېږي ته ولوېږي»

د بر تراندرسل دا وړاندیني تر ۱۳۳۹لمریز کال پوري چې د۱۹۵۰ میلادي کال سره یې سمون درلود.

خپل رنگ يې په عمل کې ثرگند کړ، لکن موږ په دې عقيده يو، چې نوموړي فيلسوف د نوموړي پيشگويي په اړوند دمالي، لنډ مهالو تجربو ثخه وه، چې له ځانه سره يې مادي علتونه درلودل .

موږ ددې توان نه لرو، چې دا وړاندينه دي د يوه شخص د مفکورې په توگه ومنو او پراخه نظره مفهوم ځيني ترلاسه کړو دا خپلواکي که هرثومره په پراخه پيمانه پېژندل سوې وي، خو نظر ورکوونکی يې د يوې ځانگړي تهذيب په دايره کې را ايسار وي اونسي تونېدلای، چې ددې دايرې له کړۍ ووزي .دا يوه ميراثي خبره ده، چې مادي او معنوي مسائل يو له بله نسي سره يو ځای کېدلای او يو پراخ جهان په يو محدود دايره کی را ايسار کېدلای نسي.

د دې مسئلې په اړوند، چې نوموړي کومه وړاندوينه کړې وه يوې پراخې دقيقې او عميقې مطالعې ته اړتيا لري . دسپين پوستو ددوران خاتمه په دې خاطر نوره رانږدې سوې ده، چې د دوی د تمدن او تهذيب اهداف نور پای ته رسېدلي دي نور داسې نوي ثه نه لري، چې نړۍ والو ته يې وړاندي کړي.سرمايه داري مفکورې، چې کوم اررښتونه او اصول درلودل هغه يې نورتر سره سوه

. د انسـاني ژوندانـه د نيكمرغـه كولـو لـه پـاره د ملاحظـې او كتنـي وړ څـه نسـته، چـي حسـاب دي پـر وسـي . غربـي تمـدن تــر ډېــره وچيــدونكى دى . د انگلســتان «ماگناكارتــاى» تــر تمــدن وروســته ، د فرانســې انقــلاب او امريكــا دموكراســې «فردي آزادي» د سقوط په حالت كي ده.

دا ټولـه مـوقتي او لنـډ مهالـه اړرېښـتونه وه ، چـي پـه يـوه خـاص وخـت پـوري يـې اړه درلـوده .د يـوې دوامـداري پروسې پـه توگـه د انسـان لـه پـاره گټـور ثابـت نـه سـول. دتمـدن دغـه اصـول پـه اصـل كـي لـه لمـړي سـره اصـولي نـه وه، چـي د انسـاني نظـام لـه پـاره دي د اصـولو بنسـټيز اسـاس وټـاكي . اصـلي اصـول دبـاور درلودلـو او لـه خدايـه سـره داړيكـو پـه معنـى دي، چـي د انسـان مقـام او درجـه يـې دكائنـاتو پـه منـځ كـي ټـاكلې ده همـدا شـان پـه بشـپړ ډول د انسـاني ژوندانـه د تفسـير غايـه پـه كښـي ښـكاره ده . پـه همـدې حقيقـت سـره غـرب مـوقتي قـوانين د الله ﷻ د دايمـي قوانينـو سـره ، چـي د كائنـاتو لـه پـاره يـې ټـاكلي دي پـه تـوپير او ټكركـي دى، دا د شــيطاني بوټــو پشــان يــې ريښــي يــوازي د انســاني عقلــي جهـان تـه ننـوزي او دكائنـاتو د خـالق لـه جـوړ كـړي جهـان او فطـرت سـره تـړاوه نـه لـري.د محـدودي انسـاني غوښـتني پـر اساس را منځ ته سوي دي.

د نــوو علومــو زده کــړه اوپراختیــا پخپلــه هغــوی تــه دونــه تــاوان نــه دی رســولئ، ولــي د ماتریــالیزم مــادي قــوت د ضــرر رســولو او وحشــت زیږولــو لــه پــاره زمینــه برابــره کــړې ده. کــه دا پرمختــگ د ماتریــالیزم پــه پرتلــه د روحانیــت ترتتــې لانــدي راســي پــه هغــه صــورت کــي بــه دومــره خطرئینــي احســاس نــه کړو.ساینســي علومــو مــادي قــوت نــن پــه وحشــي قــوت اړولــی دی. لــه همــدې املــه د نــړۍ ارواحــي قــوت د داســي کســانو لاســته لوېــدلی دی،چــي هغــوی د عمــل او ایمــان پــه یــو ځــای کولــو کــي پاتــه راغلــي دي، چــي پــه دې ســره انســانیت تــه د خلاصــون لاره نــه ورکــوي، چــي د ساینســي خطراتــو مخــه ونیســي،بلکي دا پــه هغــه چوکــاټ کــي راګیــر دي، چــي روحانیــت بایــد سمدســتي د نــړۍ د واکــدارۍ واګــي پــه لاس کــي ونیســي او پــه لاربښــوونه ســره پــه درســت ډول رهبري او مسیر ورته وټاکي»

پخــواني امریکــایي ولسمشــر«ولســن» مخکــي لــه دې چي مړ سي د خپلو عقیدتي تبصرو په لړکي ویلي وه:

«کــه زمــوږ تمــدن لــه ارواحــي اړخــه پرمختــګ ونــه کــړي ،نــو یــوازي مــادي وســایل د هغــه بقــا نســي تضــمینولای همــدا خبــره ده ټــول د وخــت چلینجونــه، چــي زمــوږ د سیاســتمدارانو ، ســرمایه دارانــو او سیاســي ســازمانونو تــه ورکــول کېــږي لــه

خدایـه وېـره او هیـواد تـه وفـاداري لار ورښـوي» دکـاني زېرمـو پـه اړوند  د مسـتر ډالـس دغـه فریـاد هغـه د کـارل پـه قـول د خلګـو پـر زړونـو  اغېـزه کـړې ده، دغـه ډول درملنـه  د روحـاني رنـځ درمـل دي. مسـتر ډالـس د هغـو  پـه هکلـه،چې زړونـه  یـې لـه سرمایې ، سیاسـت اوکلیسـا سـره تړلـي د هغـو کسـانو پـه پرتلـه، چې زړونـه یـې لـه دیـن او وطـن سـره تړلـي وي. لـه عذابـه څخـه د خلاصـون لاره نـه بـولي او د نـن ورځـي پـه پرتلـه  د فلاکـت هغه کښته تریني خواته تلونکې بولي.

د پـولس لـه دورې  څخـه، چـې دکلیسـا  راهبـانو د عیسـویت  لـه لمړۍپېـړۍ څخـه همـدا هـوی هـای راشـروع دی، خو تـر اوسـه هـم پـه کلیسـا کـې هغـه شـومه نـه سـوه پاتـه، چـې  د انسـاني ژوندانـه ټـولنیز  سیسـتم تشـکیل اوټـولني تـه یـې  وړانـدې کـړي. هغـه تـذکر، چـې مسـتر ډالـس د نصـرانیت لـه  عقایـدو  او اثـارو څخـه  پاتـه کـړئ، د نـن  ورځـې امریکـایي تمدن یې نسـې  منلای. هغـه تصـور، چـې سیسـتم یـې لـه پیلـه د انفـرادي جوړښـت  پـر ګـډوډو بنسـټونوولاړدی، د سـرمایدار نظـام پـه توګـه یـې  محـورپر یـوه نفرراګرځـوي. پـه ټولنـه کـې د احتکار د ر امنځته کېدو سبب کیږي.

زه بـاور نـه کـوم، چـې  مسـټردالس دي  د نـن ورځـي لـه تمـدني خطراتـو څخـه سـرټکوي او یـا هـم د ودې مفکـورې

د عملــي کېــدو لــه پــاره، چــې د نصــرانيت افکــار د امريکــايي ټــولني لــه پــاره فکــر ولــري، پــه دې معنــی، چــې نصــرانيت نــور مسخه سوئ دی.

نــن د دې وخــت رارســېدلي، چــې د ســر مايــداری ،ســود او ربــا خــوری سيســتم پــه بشــپړډول پــه نــړی کــي پــه نطفـه کـي خنثـی سـي دغـه د«سـود او ربـا سيسـتم» د انسـاني ژوندانه لـه پـاره د تـور بخـت او تـوري ورځـي مـادي زمينـه برابـره کړېــده. هغــه تمــدن، چــې د انســانيت د لټــی ســبب دی. د اســلام ترڅنــگ واقعــي عيســويت هــم محکــوم کــړی دی.دا ســي ښــکاري چــي ښــاغلي دالــس د عيســويت يــو ناروښــانه اړخ پــه وجــود راوړي، چــې پــه اقتصــادي سيســتم کــي برخــه نــه لــري. هغــه دکمــونيزم لــه بلايــو بــل ډول کــار اخلــي.د غيــر انســاني ژوندانــه طــرز دي لــه دينــه ســره تــړاو ولــري، نــور نــو ډېــري موانــع پــه مــخ کــي پراتــه دي هغــه خلــيج، چــي د غربــي ټــولني د عيســويت او عمــل تــر مــنځ پــروت دی اروپايــان يــې پــه اســاني ســره لــه منځــه نســي وړای پــه همــدې اســاس د ډېــرو اختلافـاتو مـنځ تـه راتـگ لـه پنځمـي مـيلادي پېـړی څخـه را په دې خوا شروع دی.

ښاغلي ډالس د روحانیت بوج دکلیسا د راهبانو اوکشیشانو پر اوږه اچولی دی، خو نومړي کسان په هیڅ ډول دا بار ترخپل مزله نسي رسولای.

هغوی نن ورځ د هغه دین لار ښوونکي دي،چي عیسویت نه بلل کېږي، بلکي د دین د تخریب داسي یو ډول دی، چي د نفاق زونې یې پخپله دکشیشانو له خپل منځـي شخړو را ولاړي سوي دي. دا د نړۍ والو او سپدونکو له پاره یو عبرت ورکوونکی درس دی. هغه کړني، چي غربیان یې په ډېره سپین سترګي او جنایت کارانه ډول تر سره کوي مسیحیت یې د ژوندانه له چوکاټه ډېرليري غورځولي او افکار، شعور، جذبات او احساسات یې د الحاد او شرک پر اساساتو ور بنا کړي دي.

زه په پوره باور او توثیق سره ویلای سم، چي ښاغلي ډالس کشیشان او راهبان د دې ډول مسئولیت وړ بللي دي، دا خبره په پرېکنده ډول پخپل مسؤلیت نسي کولای. هغه باور لري، چي دوی باید خپل سیستم او نظام له هغه دین ځخه را بیل کړي، چي دغه لغوه اومسخه سوئ عیسویت دی، چي د ایمان او عمل تر منځ ، د فردي او ټونیزو ګټو ترمنځ ،د جسمي اوروانـي ګټو ترمنځ ، د ساینس او رواني لوړتیا تر منځ هم ږغي وکړي.

همـدا رنگـه پـه ایمـان اویقـین سـره ټـولنیز ژونـد قـرار پیداکړي.پـه خلصـه توگـه بایـد ووایـو، چـې د ټـولنیز ژونـد انځـور پردینـې او مـذهبي تگـلاره عیـار کـړي. ترڅـو پـه ژوندانـه کـې د عمـل او ایمـان تـر مـنځ کـوم تـوپیر رانسـې او ددې پـالونکو خیـالاتو پـه پایلـه کـې، چـې ټـولنیز نظـم رامنځتـه کېـږي لـه الحـاد او منافقتـه پرتـه بـه بـل څـه نـه دي مـادي ژوند بـه پـه دنیـا کـې لمړیتـوب لـري، د اسـلحو او مـادي وژونکـو شـیانو تولیـد بـه پـه اوج کـې وي، پـه دې سـره بـه د نومـوړو د اسـتعمال لـه پـاره ظلـم او اسـتبداد تـه لاره هـوارېږي،د ظلـم پرته بل څه په وجود نه راوړي.

دا دانسـاني ټـولني لـه پـاره خرافـاتي کړنـه او عبـث سـوغات دی.د یـوې بشـپړي مفکـورې، دیـن، مـذهب او بـل کـوم لاره بایـد ددې کـار پـه خنـډ کـې نسـې، حـال دا چـې انسـان پـه حقیقـت کـې و یـوې همـه جانبـه مفکـورې تـه، چـې عبـارت لـه دیـن څخـه دی اړ دی.پـه هغـه کـې بیـا دعبـادت مفهـوم دومـره جـامع دی، چـې د هـر شـي ځـای خپلـه برخـه پکښې لري .

د ژونـد دا سیسـتم نـن ورځ پـه عیسـویت کـې خپـل پخپلـه مسـخه سـوئ دی. نـن بـه هغـه سـپېڅلی مسـیحیت چیـري پیداسـې، چـې د تـاریخ پـه کنـډوالو کـې ورک سـوئ

دی. د موجـــوده عیســـویت انســـاني اړخ د عیســـویت لـــه عقیدتي اړخه د یوه پراخ خلیج په توسن سره بېل دي.

د دې انقـــلاب را منځتـــه کـــوونکی اصـــلاً نورکســـان دي، چـــي د دیـــن او د مـــدنیت تـــرمنځ یـــې تـــوپیر را وړی دی. هغـه دین،چـي پـه پـوره ډول پـه ژوندانـه کـي رول لـري. دغـه دین نه دی، چي مخکي یې تعبیر سوئ وو.

د مســتړډالس پـه نظـر«دکمـونیزم د مـادي پرمختـګ او اســتبداد پــه وړانــدي د خنــډ را منځتــه کېــدل یــوازي پــه دینــي ټولنــه سـره کېـدای سـي» ولــي نــن، چــي د کمــونیزم او غربــي هیوادونــو تــرمنځ کــوم ټکــر قــرار لــري د انســان پــه لاس جوړسوي مسیحیت سره نسي حل کېدلای.

دکمــونیزم او غــرب نظامونــه دواړه پــر مــادي اساســاتو ولاړ دي او دینــي صـبغه یـې پـه عیسـویت پـورې تړلـې ده، حـال دا چـي عیسـویت دکلیسـا د پاپـانو پـه فتـوا دیـن لـه سیاسـت سـره اړخ نـه لـري، هـیڅ کـار نسـي کـولای. دا عیسـویت بـه بشـر تـه مواجـه د خطراتـو مخـه څـه ډول ونیســي پـه داســي حـال کــي د مــادي قــوت پــه عــوض یــو قــوت او پیــاوړي رهبری‌تــه، چـــي د عمـــل او مفکـــورې انـــډول یـــې مســـاوي او انســـانیت لـــه رسېدونکي بحرانه د باندي راوباسي اړتیا سته.

دين دا هيڅ وخت نه قبلوي، چې د انسانيت د غلامۍ کړۍ د محدودو کسانوپه لاس او انسانيت دي يې چِله په غوړ غلام وي. د محدودوکسانو امر ته تيارسئ ولاړ او دهغوی له خوا استعماليږي، چې ترکاري اجرا وروسته يې له خپلو دربارونو وشړي او هغوی بيا د قدمونو مځکې د مچونې له پاره دربار ته بيا راسي.

داسې يو غلام چې د خپل ارباب امر ته په دروازه کې منتظر وي او د زحمت له پاره يې د پلونو خاوره ورته مچوي او د حاضرۍ په وخت کې سر ورته خموي.

«حاضر يم اغا!

امرکوئ په خدمت کې مو يم !!» چې دا د دينداارانو په اصطلاح سره «نام نهاده کشيشان»د کليسا کليوالان وه چې د الله ﷻ په مقابل کې يې دا دنده اخيستې وه.

د الله ﷻ دين بيله دې بل څه نه قبلوي، چې په هغه دې اغا يا مشر ، ځان ساتونکی،ځان خوښی، پياوړی او د ټولو تصرفاتو په لاس کې نيوونکی، پر بشر غالب او د هغوی په منځ کې واجب احترام او بې مسئوليته وي .

هغه بايد حاکم وي، محکوم نه وي، د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ ترامر لاندې وي نه د بل ترامر لاندې.

داسـي دیـن، چـي لـه هـره اړخـه پیـاوړی او مـنظم وي پیـاوړې رهبـري ولـري د کمـونیزم لـه اضـرارو دفـاع وکـړي او انسـانیت ټـول د پیـاوړي اسـلامي نظـام ترامـر او دینـي مقرراتـو ترسیسـتم لانـدي وي پـه ټولـو معـاملاتو کـي د اسـلام د منځي حد پلي کوونکی وي.

((فَـلاَ وَرَبِّـكَ لا يُؤْمِنُـونَ حَتَّـىَ يُحَكِّمُـوكَ فِيمَـا شَـجَرَ بَيْـنَهُمْ ثُـمَّ لـرِ يَجِـدُواْ فِـي أَنفُسِـهِمْ حَرَجًـا مِّمَّـا قَضَـيْتَ وَيُسَـلِّمُواْ تَسْلِيمًا))[30]

ژبـاړه :نونـه! اې رسـوله سـتا پـه رب قسـم، چـي دوی تـر هغـه پـوري پـوره مومنـان کېـدای نسـي څـو چـي تـا پخپلـو ټولـو شـخړو کښـي حکـم کـړي او بیـا سـتا دپرېکـړو پـه اړه پخپلـو ځـانونو کښـي کـوم خفگـان ونـه مـومي او دغـه پرېکـړه په ډېره خوښي ومني.

پـه هغـه ورځ، چـي د اللـه ﷻ د دیـن اساسـات پلـي او ومنـل سـي، نـو دا کاربـه هغـه څـوک وکـولای سـي، چـي د خلگـو پـه زړونـو کـي قـرار او ښـه رهبـري ولـري. نـه هغـه نقـش، چـي انسـانیت د ضـلالت او گمراهـۍ پـر لـور سـموي، چـي هغـه همـدا دنـن ورځـي د بشـر او د هغـه د نجـات تـر مـنځ پـراخ واټـن را منځتـه کـړی دی.د همـدې کتـاب پـه لمړیـو برخـو

[30] النساء ۶۵ایت

کـې ورتـه اشـاره سـوې ده.هغـه خلاصـون، چـې ټـول يـې انتظـار باسـي.يوازې د اسلام دين دی. او بس

## دخلاصون په لټه

نــاقراره زړونــه او رېپــدونکي شــونډې هــر وخــت او هــر چيــرې د نجــات او خلاصــون نــارې وهـــي، پورتــه کېــدونکي نـارې او سـورې لـه ځانـه سره د نجـات خيـالې، نښـې نښـانې او سـتايني لـري. دغـه ږغونـه د انسـان د ريښـتوني ديـن نښـي او اوصـاف روښـانه کوي.دغـه حقيقـت د دې کتـاب محتويـات د«خطـر د زنـګ» پـه برخـه کـې ډېـر يـاد سـوی دی،چـې د «ډاکټر کـارل او مسټر ډالـس»د خبـرو پـه لړکـې يـې پـر حقـايقو رڼـا لوېـدلې وه، ولـې د غـرب دغـه دواړو مشـرانو پـه واضـحو الفـاظو د اسـلام لـه تګـلارې څخـه پـه صـحيح او درسـت ډول ږغ نه وو پورته کړئ.

کـارل پـه دې مفکـوره دی، چـې«صـنعتي ديـن» يعنـي د ديـن يـوه برخـه تکنولـوژي ده. هغـه ټـولنيز نظـم د ژونـد پـه سيســتم کــې بــولي او همــدا د نظــم دوران د خلاصــون لاره بولي. هغـه وايـي انسـان کـه هـر ډول مـادي امکانـات لـه ځانـه بېګانـه وبـولي بيـا هـم لـه هغـه څخـه چـاره نـه لـري او هغـه پـه دې ناخوښـه وي، چـې د مـادي ژونـد پـه نـه پلـې کېـدو سـره له ژونده خوند نسي اخيستلای .

هغــه د نظــامي « عســکري نظــام» غوښــتونکی دی د دې ترڅنـګ هغـه صنعت هـم پـه دې اړخ کـي لـه پامـه نـه غـور ځــوئ. هغــه نظــام، چـــي د پرســـونل پرفکــري او جســـمي اړخونوکـوم تـاثر غورځـوي. دا پـه اصـل کـي لـه هغـي لايحـې سره، چـي کـارګر تـه پـه ډېرکـار سره لـږه مزدوري ورکـوي او ډېـر توليـد پـه لاس را وړل سـي برابرېـږي، حتـی کـه يـو نفـر يـا يـوه ډلـه ټـول مـادي شـته پـه لاس کـي ونيسـي . هغـه د داسـي يـوه نظـام غوښـتونکی دی، چـي زمـوږ پـه موجوديـت کـي بـه نيمګـړی وي. موږلـه اخلاقـي او عقلـي اړخـه پـس پاتـه کـړي. طبعـي ذوق، دينـي ښـکلا مـو مقيـد کـړي لـه رکـوده سـره مـو مخ کړي او تنګ نظره کسان راڅخه جوړکړي.

د هغـه وروسـتي او نـه ختمېـدونکی هـدف لـه نظـام څخـه دا دی، چـي فـردي اصـالت بايـد ومنـل سـي،خو خپـور نسـي، ځکـه چـي پـه فـردي ډول انسـان لـه ټـولني څخـه چـاره نـه لـري پـه دې سـره زمـوږ پـر پـر اوښـکي داسـي ونسـي، چـي مـوږ د پسـونو د رموغونـدي يـوازي وڅـروي. هغـه سيسـتم، چـي پـه هغـه کـي د نارينــه ؤ او ښـځينه ؤ حقـوق پـه جلاجـلا ډول پېژندل سوي وي.

د نارينــه او ښــځينه جنســونو تــر مــنځ تــوپير ناديــده نيول ډېـر خطرنـاک دی. داسـي نظـام، چـي بشـر پـه يـوازي سـر

ژوند کولو ته پرې نږدي. لکه څه ډول ، چې د مارکس، ستالين، لېنن، فروید او ... نظريات دي. هغوی غواړي د خپلو نظرياتو په پلي کېدو سره د ټول انسانيت غوښتني تر پښو لاندي، د انسانيت لاره تخريب او داغداره کړي .

دا سي يو نظام، چي تر قوانينو يې پښې د باندي سي او پر هغه باندي داسي کسان پښې کښېږدي، چي هلته انساني اخلاقاً داغداره کړي .داسي نظام، چي دانساني ژوندانه سره ټکر وکړي. انساني سيستم بايد د مادي ژوندانه په پلي کېدو سره د روحاني ژوند آزار وونکی نه وي چي په نيتجه کي يې انسان له ټولنيز ژونده فرار وکړي او رهبانيت يا د يوازيتوب غېږي ته پناه ور وړي، خو ډاکټرکارل د داسي يو نظام غوښتونکی دی، چي «انسان پېژندنه» بايد په همدې اوصافو سره ستايلې وي، لکن په انسان پېژندنه کي دا امرثابت سوئ، چي انساني عقل د انساني خلقت يو ښه پېژندوی دی.

را سئ!وګورو،چي مسټرډالس د ژوندانه د نظام څه ډول جوړوونکی دی؟

ډالس داسي فکرکوي، چي روحاني ژوند د ژوند دوهمه برخه د. حال داچي روحاني ژوند ته بايد دوهم حيثيت ورنه کول سي او نه هم د انسانيت په غوښتنوکي

ایمـان دوهـم مقـام ولري.هغـه نظـام، چـې د انسـانیت لـه پـاره د ایمــان او فعالیــت پــه لټــه مســاوي لاره ولــري د پېچلــي او مغلقــي لاري لرونکــی نــه وي هغــه برنامــه،چي د امریکــایې برنـامي پـه شـان د«فـردي اصـل» پراسـاس ولاړه او زړه خسـته کـوونکې نـه وي.دا ډول انسـاني فـردي اصـل د ټـولنیز ژونـد مترادف دی

دا سیسـتم بـه ترهغـه انـدازې پـوري ناکـام پاتـه نسـي، بــې دالحــاد لــه خوښــیه بــل کــوم ټولنیزعــدالت د دوی پــه اصـطلاح ممکـن نـه وي د هغـه پـه غوښـتنه بـه داسـي برنامـه جـوړه سـي ، چـي دیـن او د هغـه د عملـي صـورت رشـته سـره ورتـه والـی ونـه لـري .د ایمـان او عمـل تـرمنځ رشـته پـرې نـه کــړي او لــه غمــه داســي خلاصــه ټولنــه، چــي دیــن د اوسني عصر له غوښتنو سره مطابق وي.

د هغـه پـه نظـر هرکلـه بایـد مـادي شـیان پـه لمـړي پړاو او روحانیت تـه دوهـم رنـګ ورکـول سـي، پـه هغـه دیـن کـي بایـد اسـتبداد او ظلـم تـه پـه اسـتثنایي حالـت کـي هـم نفـرت وســي او منفــور وبلــل ســي. داســي یونظــام، چــي د انســان اړرښــت د مــادي شــیانو غونــدي وي، محضــي پرثــروت او د مـوادو پرتولیـد وي.پـه هغـه کښـي بایـد ارواحـي ژونـد محکـوم او د انسان فکري آزادي دمادي سهولتونو په قید کښي وي.

ډالـس داسـي يـو نظـام غـواړي، چـي لـه عقيـدې پرتـه د هغــه د چترســايه لانــدي يــې ټــول کســان د وروڼــو غونــدي ژونـد وکـړي.د وروروڵـۍ رشـته مسـلک وګرځـول سـي،چـي پـه هغـه سـره فـردي اصـليت پـه ټولنيزنظـام کـي سـاتلی وي، نـه پـه عقيـدتي نظـام کـي دا سـي د ژونـد يـو سيسـتم، چـي د ايمـاني روحيــــې ســــاتندويه وي د علمــــي، انکشــــافي، اکتشــــافي او ساينســــي لاســـته راوړنــو ځــارونکی وي. د ســاينس اکتشــاف د دې لـه پـاره ونـه دروي، چـي هغـه د مـذهب او ديـن لـه پـاره خطرنـــاک دی. داســـي يـــو سيســـتم، چـــي د ايمـــان او عمـــل تـرمنځ يـې کړنـه بـې تـوپيره وي او د عبـادت پرټولـو خـواوو يـې تصــورخپوروي او د انســاني ژوندانــه ټــول اړخونــه پــه نظرکــي نيول سوي وي.

ښـــاغلی ډالـــس لـــه خپلـــو امريکـــايي کشيشـــانو او ارواحـــي مخکښـــانو د يـــو داســـي نظـــام د منځتـــه راتـــګ هيلـــه لـــري، چـــي د غـــرب دکليســـا او ټـــولنيزو کړنـــو د ژونـــد تـــرمنځ تفاوتونـــه پـــه پـــوره ډول روښـــانه او لـــه هغـــه ځخـــه ډېرخبـــر وي.خـو، ښـکاره خبـره ده، چـي هـيڅ انسـاني پوهـه يـا پېژندنـه د ډاکټرکـارل وخبـرو تـه مثبـت جـواب نسـي ويـلای دکليسـا هيڅ يو پېشوا و مسټر ډالس ته جواب نسي ورکولای .

هغــه نښــي، نښــاني او صــفتونه، چـــي د دوارو غربـــي مفکرینـو پـه نظریـاتو کـي نغښـتي دي . یـوازي یـې پـه اسـلامي دین کی څـرک پیـدا کېـدلای سـي، هـیڅ یونظـام، چـي لـه پیلـه تـردې دمـه د انسـان پـه مرسـته را منځتـه سـوئ وي د ژوندانـه د داسـي سیسـتم طرزنسـي وړانـدي کـولای. ډاکتـر کـارل پـه پـراخ فکـر او لـوړ نظـر دې تـه د خلاصـون کومـه کتنـه نسـي کـولای پـه دې خـاطر، چـي هغـه خپلـه سـپین پوسـتی دی او د سپین پوستی د نژادي تبعیض په رنځ اخته دی.

یـــوازي ســـپین پوســـتی نـــژاد د عـــزت، شـــرف او انســانیت مرکــزي ټکــي نــه بــولي، بلکــي د خپــل نــژاد د خلاصــون لــه پــاره پرخپــل کتــاب تمرکزکــړی دی. اســلام د سـپین پوسـتو ملکیـت نـه دی، ځکـه نـو نومـوړی عـالم همـدې دین((اسلام))ته کومه اعتنا نه ده کړې.

همـــدا ډول ښـــاغلی ډالـــس دغـــه نظـــام آزادي بخښـونکی اونجـات ورکـونکی او د لیـدني وړ نـه حسـابي ، پـه همـدې خـاطر دا نظریـه هـم پـه سـپین پوسـتانو پـوره اړه نـه لري. هغوی له دغه حق دینه په ویره ځان سزا واربولي.

هغـه د اوسـني عصـر پـه داسـي یـوه جبهـه کـي قـرار لـري، چـي داسـلام ریښـه د نـړې لـه مخـه وکـاږي او د هغـه پـه عـوض د خپـل انسـاني فکرشـئونات عملـي کـړي او ځانونـه

اقتـدار تـه ورسـوي. امـا دا امـر لمـرين دى، اسـلام بـه وتـوانېږي، چې د نـن ورځـې نـا قـراراو کړانـده حالـت پـه آرامـي بـدل کـړي. همـدا د اسـلام نسـخه د نـړۍ وال انسـاني رنـځ د مخنيـوي درملنه ده.

اروپايـان او نـورنړۍ والـو چـې د مـذهب او ټـولني ترمنځ پـه تفکيـک ښـه پـوه سـوي دي او بيـا وروسـته مـذهب يـو شـکل پېژنـدلی،خو اسـلام خپلـه د ژوندانـه يونـوی نظـام وړانـدي کـړی دی. دا ديـن پـر مـاتي نـه منونکـو پـايو ولاړ او د ننـنـي ژوندانـه يـو متـوازن نظـام نـه دی، بلکـې د عقايـدو او دينـي ارشـاداتو پـر صحيحوانسـاني تصـوراتو او مفکـوره ولاړديـن دی،چـې د بشـر د ژوندانـه پرعمـل او د هغـه پرکړنـو باندي سربېره نوي ژوندانه ته د تعميردنده پرغاړه لري.

انسـاني ټولنـه لـه خپـل اصـلي مسـير څخـه بـې لاري سـوې ده، خـو دا لـه هغـې ورځـې نـه ده بـې لاري سـوې، چـې انسـانانو دجمـاداتو و علـم تـه مخـه کـړې ده، نـه دا لـه هغـې ورځـې څخـه بـې لاري سـوې ده ، چـې انسـان پېژندنـه پـه بشپړ ډول تر شـا پاتـه سـوې ده، نـه لـه هغـه وختـه چـې انسـان د ماشـين الاتـو پـه توسـط محکـوم گرځېـدلی دی، چـې دا حاکميـت يـې پـه پورتـه توگـه د انسـان پـرخلاف دی، دا لـه هغـې ورځـې څخـه چـې انسـان سياسـي، ټـولنيز، اقتصـادي

سیستمونه اونظامونه د ځان پرستۍ په موخه په لاس کې نیولي دي. دوی دا نظامونه د خپلو لنډ نظریو په لړکې اسلام نادیده نیولئ، چې د بشر پر ټولو اړتیاوو یې سترګي پټې کړي.

د «ډاکټر کارل»په عقیده دغه ټوله چالشونه او لنډ نظرۍ په رشتیا د دوی له پاره عبرت انګېزه دي، خو د مذهبه مخ اړونه د تاریخ په پس پاته دوره پوري اړه لري.

انساني ټولني له هغي ورځې خپله لاره ورکه کړې ده ، چې د ټولني او مذهب پر تفکیک یا بیلوالي خبره سوې ده. د مذهب ټولنیز تړاو او ژوندانه د علومو، روښانفکرۍ او په پربیلابیلو صنعتي دورو باندي مختلف انکشافات نه یوازي د معتقداتو په توګه له کلیسا څخه بیان سوي، بلکې د اللهﷻ له نظام څخه د مخ اړوني په توګه د اعراض په ډول خلګ مجبوره کړل سوي دي، چې دین له صنعت او سیاست څخه بیل کړی او د اللهﷻ پرستۍ او پرهغه اعتقاد ئې په ټولنیزنظام ګام ایښئ دی. ډاکټر په پوره توګه خطاتللئ، دی وایي:«صنعتي علوم او انساني علوم یو له بله سره وموښلوی دا کولای سي، چې د انساني خلاصون له پاره نوې لاره پرانیزي» حال داچې انسان ساینس ته اړتیا نه درلوده، بلکې تر هغه په ژور ډول

د کائنــاتو پرخــالق او د هغــه  پــر يــووالي بــاور او يقــين کولــو تــه اړتيـا لـري  انسـان هيڅکلـه د يـوه انسـان پـه توگـه د ايمـان  لـه سـاحې نسـي بـې برخـي کېـدلای.زموږ عقيـده پـر دې وه، چـي ډاکټرکــارل د صــنعتي تمــدن پــه پرمختــگ کــي د انســاني پرمختگ  او ارتقا لـه پـاره يـو نظـام يـا نـوی سيسـتم پـه ډېـر ويـاړ سـره د را منځتـه کېـدو پـه لټـه کـي دی، چـي پـه يـوه حرکـت سـره ټـول ددې اوسـپنيز قفسـه ځخـه را دبانـدي کـړي، خـو پـه دې لټـه کـي هيڅکلـه بريـالی نـه سـو لـه نومـوړي قفسـه  څخـه دا د خطرزنـگ هغـه وخـت راځي،چـي انسـان د مـادي تمـدن په داسی تلکه نيولي ياست،چي پر يوه خوايې وتل نه سته.

انســاني ژونــد، چــي لــه هــره اړخــه  څخــه د وحشــي حالتـه څخـه تهديـدېږي امکـان نـه لـري، چـي پـه يـوه لـوی حرکـت سـره  دطبيعـت لـوري تـه را وگرځـي. پـه هغـه فطـرت، چـي اللـه ﷻ انسـان پيـدا کـړی دی.  دا ناممکنـه ده پـه هغـه څـه سـره، چـي ټـول اصـول، نظريـات او وسـائل، چـي تمـدني انځـور جـوړوي  د هغـو پټوخطراتـو څخـه دي د فطـرت وټـولنيز حالـت تـه را وگرځـي داد انسـاني فطـرت خـلاف لـه هغـه ورځـو را شـروع سـوې، چـي ددين او دنيـا دبيلتـون مفکـوره يـې پـه وجود راوړې ده.

نــن ورځ د انقــلاب ژونــد بخښــونکی نوښــت خلــگ نــه منــي، چــي د انســانيت ټــولنيز ژونــد يــې پرمحکمــو پښــو درولــی دی. داســـي محکمــوالی، چـــي انســـان تـــه د فطـرت دورکــړل سـوو واقعيتونـو پـر اساسـاتو بنـا وي او داسـي يوسيسـتم، چـي انسان د نړی والو کائناتوسره همږغی سي.

زمـوږ پـه لـږ پـوهي سـره د فطـرت واقعيتونـه د غربـي تمـدني عينکـو لـه رنگينـو کټـه بينـو ځخـه نـه کتـل کيږي.زمـوږ محـدود عقـل او لـږ علـم، لکـه ډاکټرکـارل، مـوږ تـه اجـازه نـه راکـــوي ، چـــي د انســـاني ژوندانـــه د طرحـــه کولـــو اصـــلي د انسان په لاس وي.

کـــه ددې نظـــام پـــه وړانـــدي ((د انســـان يـــا بشـــر وجـــود)) ځلـــور طرفونـــه د ناپوهی‌همدغـــه ســـيمي ســـي. د همدغه حالـت لـه وجهـي مـوږ تـه د نظـام د تـر مـيم اجـازه نـه را کـوي، چـي ترخپلواطرافـو د بانـدي سـاحوکي مداخلـه وکـړو. پـه دې نړی‌کـي ډيرځـه بـا اررښـته دي او لـه دې امـره انسـان پـه پـوره ډول نـاخبره دی، چـي پخپـل لاس يـې خپـل ځانتـه نظـام جـوړکړی او لـه دې کبلـه يـې ځانتـه سـتونزي، مشـکلات اوعذابونــه را منځتــه کــړی او ځانونــه يــې پــه راتلــونکي لــه ستونزوسره مخ کړي.

مـوږ د انسـاني عقـل پـه لړکـي د اهدافوپـه ټاکنـه کـي اشـتباه کـړې ده. مـوږ دا مشـاهده کـړي، چـي انسـان پـه دې نړۍ کـــي داســـي مـــادي څـــه را منځتـــه کـــړي دي ډېـــر حيرانـــوونکي دي. مـوږ پـه دې وهـم کـي يـو چـي وروسـتيو حـالاتو کـي نـړۍ والـو ليـري واټـن ويشـتونکي توغنـدوی جـوړي کـړي دي ذره يـې تجربـه يـې کـړې ده. لـه هغـو يـې ذروي او اټومي بمان جوړکړي دي.

هغـه يـې د طبعـي قوانينـو پـه وړانـدي ځـای پرځـای کـړي دي، چـي ددې کـار سـزاوار هـم پخپلـه انسـاني عقـل دی مـوږد نـړۍدا وضـعه پـه نړۍ کـي د انسـان پرغـاړه وراچـوو . تـر څـو مفکـوره، تصـورات، قواعـد،اعتقادات او اخلاقـي اساسـاتو کړنـي را منځتـه کـړي، مگـر کلـه چـي دغـه کړنـي پخپـل عقـل هيـري کـړو، زمـوږ پـه نـړۍ کـي بـل کـار کـوي، چـي درک او احسـاس يـې د هغـه لـه پـاره کـولای سـي، چـي قـوانين درک کـړي، د کـار وخـت پـه (( انسـاني نـړۍ)) کـې پـه کـار راځـي. نـو هغـه وخـت مـوږ دا اټکـل کـوو، چـي د واقعيتونـو لـه درک کولو سره مو پېچلي حقايق وشرموي.

داښـکلې خبـره ده؛ هغـه څـوک بـه دا واقعيـت قبـول کـړي، چـي انسـاني عقـل ډېرلنـډ ليـدونکی وبـولي، ددې کسـانو مفکـوره هـم پـه غـرب پـوري اړه لـري او ددوی پـه

اصــطلاح پــه دې وســيله ســره د انســانيت د خلاصــون لاره ســنجوي. د ځينــو عقيــده داســي ده، چــي پــر شــي دي ايمــان او يقــين وي. وي دي، چـــي انســـاني ژونـــد وی، نـــور د نـــورو گټورو علوموبرخي، بايد ناديده ونيول سي.

دا نـــه يـــوازي يـــو لـــوی تـــوهم دی، بلکـــي ډېـــر خنـــدوونکی هـــم دی، پـــه تاســـف ســـره غربـــي تمـــدن همـــدا تائيـدوي. حتـی تـر دی، چـي ښـاغلی ډالـس د سـولي پـه برخـه کـــي د خپـــل يـــو فصـــل پراخـــه برخـــه را وړې، چـــي دهمـــدې کتاب په مخکنيو پاڼوکي مو اقتباس کړی دی.

د اللــهﷻ لــه خــوا پــه جوړســوي انســاني نظــام کــي ايمـان او يقـين داسـي نـه دي. د اللـهﷻ ديـن نـه غـواړي، چـي د سـاينس او تمـدن ځـای ونيسـي او نـه هـم لـه طبعـي علومـو ســره مخالفــت ولــري دا نظــام د ژوندانــه او دعلــم د تــر ســره کولو له پاره د اساسي چوکاټ محورلري.

هغــه د يــوه داســي تمــدني پــوهي او ژونــد درلــودونکی د قـــول اوعمـــل يـــو روښـــانه ثبـــوت دی، چـــي د انســـاني ژونـــد اداره رهبـــري کـــوي اســـلام پخپـــل ذات کـــي هـــم دا اعلانـــوي، چـــي د انســـان عقـــل پـــوره آزادي لـــري ترڅـــو د ژونـــد د مـــادي سيســـتم لـــه کائنـــاتو، د هغـــو لـــه قوانينـــو، او بيلابيلـــو قوتونـــو، زيرمو ا و د هغوئ د پوښونو په پلټنه کي بوخت وي .

همـدا ډول دغـه اعـلام يـو عمـومي بلنـه ده، چـي عقـل خپلــي کړنــي پــه پراخــه ســاحه کــي د اللــهﷻ د امــورو تــر چترلانــدي ســرته ورســوي.د دې ترڅنــګ دا دعــوت د هغــو لــه پـاره عـام دی، چـي خپـل عقلـي پړاوونـه د اللـهﷻ تـر اوامـرو لانـدي پلـي کـوي. هغـه مفکـوره، چـي د ژونـد پـه دوران کـي د اللـهﷻ او مخلـوق تـرمنځ اړيکـي قـايمي کـړي د انسـان مقـام او منزلـت د کائنـاتو پـه مـنځ کـي ثابتوي.هغـه قـوت او پياوړتيـا د اسـلامي شـعايرو ترچتـر لانـدي وده اونمـو کـوي د ټولـو لـه پاره پراخ امکانات، وسايل او اختراعات برابروي.

پــه دې وســايلوکي تغيــر او تبــديل رامنځتــه کيــږي، مګـر اسـلام د دا فرصـتونو امـاده کـول د هغـوی نـش او نمـا د هغـوی تخليقـي اړرښـتونه اونوښـتونه پـه پـوره ډول پـه نظرکـي لـري، چـي دا ډول پراختيـا اوانکشـاف هيڅکلـه لـه اسـلام سـره ټکـر ونـه کـړي او نـه يـې د نـابودۍپر لـوري بـوزي. نـه د فشـار راوړلـو لامـل سـي څـه ډول، چـي ډاکټرکـارل دننـنـي تمـدن تعريف هم داسي کړی.

اســلام يــوازنی ديــن دی، چـــي د عملـــي ژوندانـــه بنسـټونه يـې د حقـايقو پـر بنـا جـوړ دي.هغـه اسـلوب، چـي لـه اسـپانيا څخـه د اروپـا پوهنتونـو تـه ور انتقـال سـوي دي«روجـر بـيګن وفـرانس بـيګن»يـې پخپلـه غيـره کـي ونيـول د هغـوی د

دې ژوندانـه دپیـل کېـدو اسـلوب سـول، «رابـرټ بریفالـټ» یـو غربـی پـوه د یـاد تقلیـد اعتـراف پـه وارو وارو کـړئ هغـه وایـي: اسـلام د لمړنـي ژوندانـه طرحـه و داسـي علـم تـه سـپاري، چـي لـه هـره اړخـه پـوره، لـه جهالـت، نواقصـاتو او نفسـي غوښـتنو څخـه مبـرا وي.اللـه ﷻ انسـانانو تـه د هغـه علـم د زده کـړي وظیفه ورکوي

هغـه اللـه ﷻ چـي دا جهـان او ددې جهـان پـه غېـږه کـي یـې هرڅـه پیـدا کـړي دي.د جهـان د قوانینـو سیسـتم یـې جـوړکړئ، انسـان یـې پیـدا کـړ او هغـه تـه یـې پـه ټولوکائنـاتو کـي دکـار تـوان او اسـتعداد ورکـړئ دی. یـوازي هغـه اللـه ﷻ دفطرت،کائناتو او بشر په واقعیتونو ښه پوهېږي.

یـوازي اللـه ﷻ دی،چـي د انسـان د ژونـد کولـو لاره او نظام ټـاکي، چـي فـردي او ټـولنیز ژونـد د هغـه شـا او مخ تـه ټـولي برخـي پـه ځـای اومهـال کـي چـاپیري کـړي دي. د اللـه ﷻ جـوړ کـړئ نظـام د انسـان عقـل دکلیسـا دکشیشـانو لخـوا د جـوړ سـوي قـانون پـه شـان نـه دی. داده د اللـه ﷻ یـوه بـې سـاري تحفـه ده چـي انسـان مصـروف او د خپلـي سـرگرمۍ پـه پایلـه نوښـتونه او اختراعـات رامنځتـه کـوي. د دې ټولـو لاسـته را وړنـو پـه مشـاهده اللـه ﷻ د انسـان عقـل داسـي جـوړ کـړی دی، چـي بایـد لـه اللـه ﷻ څخـه ووېـرېږي. دا

کـار انســان د نفســي غوښــتنو، د لاري لــه ورکيــدو او انحطــاط څخه ساتي.

اسـلام د انسـاني عقـل لـه پـاره داسـي لاره ټـاکلې چـي پـه بشـپړه ډول راسـته لـه سـتونزو اوضـلالت څخـه خلاصـه ده اللـهﷻ ددې کائنـات خـالق د انسـاني ژوندانـه لـه پـاره داسـي مقـرره ټـاکلې ده،چـي پـه هغـه کـي جمـادات او ژونـدي موجـودات د انسـان تـابع گرځېـدلي لـه همـدې مقـررې انسـان پـه دې کائنـاتوکي دعـزت او احتـرام وړ دی.پـه دې شـرط چـي انســان د اللــهﷻ پــه وړانــدي خپلــه بنــدگي حــس او دا درک کړي،چي(انسان) د اللهﷻ پر مځکه د الله خليفه دی

لــه يــادو واقعيتونــو څخــه دا خبــره روښــانه کېــږي، چـي د ژوندانـه د نظـام لـه پـاره مسـتېږدالس د نـارې لـوی لامـل همـدا(( اسـلامي نظـام)) دی، خـو متاسـفانه تعصـب بيـا هـم سـپين پوسـتان کوي.اسـلام د ژونـد داسـي نظـام دی، چـي د ډاکتـرپـه وينـا د انسـانيت د سـاتني لـه پـاره د بربريـت لـه تمـدن ، او د مســتېر ډالــس پــه وينــا دکمــونيزم لــه دامــه ووزي او د اسـلام د زمـا مـدارانو پـه خبـر ددې اسـلامي نظـام علـم بـرداران د انســاني محکوميــت د خلاصــون او بريــالتوب ســبب ســي، مـوږ يـوه ښـه او تجربـه سـوې نسـخه وړانـدي کـړو او دهغـې پـه توسط مسئوليت په ښه توگه سرته وو.

نننـــی صـــنعتي تمـــدن پـــه حاضـــر وخـــت کـــي پـــر انســـانيت بانـــدي حاکميـــت لـــري. پرانســـان هغـــه افکـــار حـــاکم دی، چـــي انســـاني، ارزښـــتونه او نـــوامس يـــې اور تـــه اچـــولي، چـــي اوس پـــه ايـــرو بـــدل ســـوي دي مـــوږ داخبـــره، چـــي صـــنعتي ژونـــد او تمـــدن د انســـان پـــه ژونـــدکي گوتـــه پـــه شـــمار ســـهوليتونه او اســـانتياوي رامنځتـــه کـــړي دي منـــو. امادغـــه ډول اســـانتياوي چـــي ډاکټرکـــارل پخپـــل کتاب((نـــاپوه انســـان))کي اعتـــراف پرکړئ دی دمادي ژوندانه له پاره ډېرتاواني اومصرفي بولو.

هغـــه مفکـــوره، چـــي اســـلام دکائنـــاتو او د هغـــوی پـــه حقيقـــت د انســـان رول اونقـــش او همـــدا د فطـــرت او ژوندانـــه د نظـــام وړانـــدي کـــوي دهغـــه کارخـــانو او د هغـــوی لـــه توليداتوســـره نـــه برابرېـــږي، نـــه يـــې لـــه منځـــه وړای ســـي، نـــه يـــې ســـهولتونه اواســـانتياوي ناديـــده نيســـي، چـــي د ســـاينس نـــړۍ د انســـان لـــه پـــاره را وړانـــدي کـــړي دي، بلکـــي د تمـــدن او صـــنعت پـــه پرمختـــګ کـــي بـــه د تمـــدني کتنـــي هغـــه اساســـي ټکـــی پـــه بـــل ډول را وړانـــدي کـــړي او د همـــدې کمـــالاتو صـــحيح اســـتعمال يـــې راتـــه روښـــانکړئ. همداســـي دانســـان روح د ايمـــان لـــه ثروتـــه ســـره برابـــر کـــړي ســـاينس او صـــنعتي تمـــدن د هغـــه تـــر امرلانـــدي ولـــري؛ نـــه دا چـــي ســـاينس او صـــنعتي نظـــام پر افکارو او اذهانو باندي مسلط وي.

اسـلام د انسـان پـه زړه او د مـاغ کـي د عـزت او شـرف حـس پیـدا کوي.هغـه د ژوندانـه لـه اساسـي او ښایسـتو اررښـتونو څخـه خبـر کـړي. لـه ذلـت، خـوارۍ، انحطـاط او سـتړیا څخـه یـې را وګرځـوي هغـه مفکـورې، چـي د«ډارویـن او کـارل مـارکس» لـه چټـي نظریـو څخـه رامنځتـه سـوي دي، بایـد وغنـدل سي.انسـان بایـد دا احسـاس کـړي، چـي اشـرف المخلوقـات دی، بایـد د مـادي ژوندانـه، صـنعت او سـربېرني ښکلا تابع او ترامر لاندي نه وي.

انسـان روحـاً د اللـهﷻ د نعمـت لـه مخـي سـرلوړی دی.د مـادي شـیانو څخـه بایـد د ایمـان او عقیـدي پـه داخلـي چوکـاټونوکي کـار واخلـي دخپلـي آزادۍ او صـلاحیت څخـه بـر خمـن وي. ماشـیني، صـنعتي، تخنیکـي ژونـد او خرافـاتي مفکـورې بایـد لـه هـره اړخـه محاصـره کـړي ترڅـو بلـي خواتـه سرایت ځیني ونه کړي.

د مـومن د روح پـه اراده د آزادۍ او اسـتقلال څخـه یـو پیـاوړی قـوت کېـدای راسـي، چـي د هغـه لاملـه د نننـي ازار رسـوونکي تمـدن د تـاوانونو مخنیـوی وکړي،لـه منځـه یوسـي دصـالحواو پـاکو بنـدګانو د اخلاقـي او معنـوي او اقتصـادي نـش اونمـا سـبب سـي ددوی دا نـش او د اسـلامي فرهنـګ د پرمختـګ پرپایلـه منـتج سـي او د اړتیـاؤ د پـوره کولـو لـه پـاره

هماهنــګ او د انســاني ضــد اوضــاع څخــه، چــې د وســايلو  او مواد و پـه توسـط پـرمخ  ځـي مخنيـوی وسـي انسـان لـه انحطـاط څخه خلاص او نجات ورکول سي.

مختلــف وســايل د هغــوی د اســتعمال طريقــه او لاري خپلـه مقدسـي نـه دی. پـه هغـوی کـي انسـاني کرامـت لـه لمــړي ســره ناديــده نيــول ســوئ دی.يــوازي د اســتثماري اهــدافو د پلــي کېــدو لــه پــاره، چــي د انســان وينــه زبېښــي را منځتـه سـوئ دی. هغـه وخـت بـه بريـاليتوب را منځتـه سـي چــي انســان ترمــادي او توليــدي شــيانو لــوړ وبلــل ســي.کاري وسـايل او توليـدات داسـي تغيـر سـي، چـي د انسـان اررښـت اوکرامت ترې لوړ نيول سوئ وي.

د اســلام  د نــوي مفکــورې پــه لړکــي د اســتقلال مفکـوره د اسـلامي انکشـاف او منځتـه تـه راتـګ بيـا ترهغـه وروسـته د انسـاني روح حاکميـت بـه  د ايمـان پـه نـور منـور او داســي روشــونه او لاري پــه لاس راوړي، چــي انســان زيــاتي مطـالعې او علمـي معلومـاتو تـه بـه يـې اړباسـي. پـه همـدې ترتيـب د ښـاغلي ډالـس فريـاد تـه د اسـلام لـه ديـدګاه څخـه يـو سترجواب ويل سوئ وي.

هغـه د داسـي يـوه نظـام د اړتيـا فريـاد مخکـي لاپورتـه کـړئ دی، مګـر هغـه ځـانګړني، چـي ده بيـان کـړي وجـود نـه

لــري. دا دکليســا کشيشــانو او راهبــانو نيمگړی نظــام دی، چــي  د اجـرا تـوان يـې ور سـره نسـته. اسـلام  يـو ښـه نعمـت دی، چـــي لـــوی اللــه ﷻ را منځتــه کـــړئ دی.د اللــه ﷻ پــه اراده دا پيــدا ســوئ نظــام د فطــرت اوکائنــاتو ســره پــوره هــم ږغــئ دی.دکائنـاتو پـه فطـرت کـي داسـي عناصـر سـته،چي پـه فطرتي ډول يې انسان ته ورکړي دي.

د تخليـــق پـــه پيدايښـــت او حرکـــت يـــې د نـــوري ودي او نمـــو را منځتـــه کېـــدونکی دی.لـــه دې وجهـــې څخـــه پـــه جرائـــت او توثـــق ســـره ويـــلای ســـو، چـــي انســـاني فطـــرت د اوسـني عصـرد اړتيـاوو پـوره کولـو لـه پـاره واقعـي او مترقـي لاري پيدا کوي نه صنعت د اسلام له پاره.

پـه دې قسـمت کـي لـه هغـو عناصـرو سـره ټکرکېـږي چـــي د انســـانيت لـــه پـــاره تـــاواني وي.د خلاصـــون د لاري لټـــون د اللـــهﷻ لـــوري لـــورول ســـوئ ســـوغات«اســـلامي نظـــام»دی چـــي د انســـانيت د خلاصـــون مســـئوليت پرغـــاړه اخلـــي غربيـــان د داسي يونظام غوښتونکي دي،خو له قبلېدو يې انکارکوي

## راتلونکې داسلام ده

دا تــر لمــر روښــانه واقعيــت دی، چــي اســلام کــولای ســي انســان د وحشــي  حــالاتو لــه پنجــو را دبانــدي او آزادي ور وبخښــي. د تمــدن څخــه زيږدلــي لړزانــده او تبــه راوړنکــي

فريبونـه، چـي مخـي تـه راځـي همدغـه اسـلام دي، چـي پـه عـوض يـې انسـانيت تـه يـو سـالم نظـام وړانـدي کـوي، چـي د فطـرت او انسـان تـر مـنځ د همـاهنگۍ ښـه ادارچـي بلـل کيـږي. توليـدي پراختيـا يـې لـه روحـاني او اخلاقـي اړخونـو سـره هماهنگـه او هـم پيمانـه کـړې ده. بلآخـره اسـلام عبـارت له هغـه څـه څخـه دی، چـي کـولای سـي د ژوندانـه يـو اساسـي نظـام جـوړ کـړي. د مـادي پرمختـګ او روحـاني ژونـد تـرمنځ هـم ږغـي را منځتـه کـړې، چـي مثـال يـې د اسـلامي نظامـه پرته په بل نظام کي نسته.

د واقعيتونـو بـه اخرکـي د دې جنايـاتو څخـه پـرده پورتـه کـړي، چـي پـه انسـانيت کـي مرتکـب هغـه کسـان دي چـي پـه هرځـای او وخـت کـي د اسـلامي پـاڅون د پلويـانو پـه وړانـدي تاوانونـه او خسـارې را منځتـه کـوي. ټکـوي يـې او تـر سـکنجو لانـدي يـې نيسـي. لـه دې جملـې کسـانو ښـاغلی ډالـس تـر ټولـو د مخـه فکرکـړئ دی هغـه د داسـي يـو نظـام څخه سرټکوي، چي مرتکبين يې پخپله غربيان دی.

ټولـه جنايـات هـم لـه همـدې املـه پـه دې وسـايلو سـرته رسـوي. د اسـلامي اثـارو، ارزښـتونو او اسـلامي نقـش د پيکـه کولـو او لـه منځـه وړلـو لټـون کـوي او د اسـلام د پلـي کېـدو پـه لاره کـي بېلابېلـي بهـانې پيـدا کـوي. لـه انسـانيت

څخه د انسانیت د لیري والي انتظار باسي او د اسلام په وړاندي ډول ډول توطئې او دسیسې جوړوي.

دا ظلم دی، چې د انسانیت دله منځه وړني له پاره هر ډول کار روا بولي.د ډاکټرکارل په نظر همدا انسان د مادي فلسفې تر ضربو لاندي دی. د ښاغلي کارل په وینا د انسانیت پر پښو باندي د تمدن فرېبوونکي هتکړۍ بسته سوي دي، چې انسان د نابودۍ پرلوري بیایي په هرګړي کي د وحشت د درې پر لور روان انسان، چې د خلاصون له پاره یې د اسلام له دینه پرته بل نظام نه پیدا کېږي، ولي د اسلام د دین په بېلابېلو اطرافو او کونجونو کي د اسلام په وړاندي په ډول ډول د سیسو لاس پوري کیږي، خو هغه طوفان چې د اسلامي دین دښمنانو د اسلام د دین په مقابل کي پارولئ هیڅکله به ونه توانیږي چي د اسلامي امورو د واکدارۍ په وړاندي خنډ سي.

اسلام له پیله تر دې دمه د همدغو وحشي کړنو اوضرباتو د له منځه تللو په موخه پاڅون کړئ، چې نن د اسلامي نهضت مخکښان په بېلابېلو ډولونو د داسي ناورا چلنجونو سره مخامخ کېږي همدغه اسلامي نهضت دی، چې ددې ډول ناروا کړنو په وړاندي خنډ نه منونکې مبارزه کوي او هرګام په پوره بریالیتوب سره پورته کوي د خپلو

هیوادونو دیوالونه او نظامونه یې د خپلو وسونو په محدوده کې محکم کړي دی له هغوځخه دفاع کوي حال داچې همدا وخت په هرنوعه مادي وسلو سمبال نه دی.

همدغه اسلام دئ، چې د شرقي ایروشیا((اسیا)) څخه تر تاتارستان پوري سیمي یې د صلبیانو له منګولو ایستلي دي .

که صلیبیان هم د مسلمانانو غوندي پیروزه سوي وای، لکه په اسپانیه کي، چې واک ته ورسېدل او یا لکه یهودان، چې په فلسطین کي کامیابه سول.په هغه صورت کي به نن له عربي ملته یو هم نه وای پاته ټول اسلامي هیوادونه به د نقشې څخه کُرې لیري سوي وای اسپانیه د تېرو او فلسطین نن ورځ ددې حقیقت شاهدان دي.

په هرځای کي، چي د اسلام ریښه کنبل سوې ده؛ هلته نه اسلام باقي پاته سوئ، نه ملت او نه هم ژبه.هغوی، چي د عربو او تاتارو سیمي یې وساتلي عربان نه وه، بلکي تاتار وه، چي د اسلام د سرشاري جذبې په درلودلو سره یې د خپلو تاتاري هم نژادو سره د عقیدې د بېلتون له اسیته جګړې او قیامونه وکړل.هغوی د مسلمانۍ یو قوت وو، چي د اسلامي عقیدې او روحاني قیادت په

رهـا کــي د امــام ربــاني«رح» او ابــن تيميــه «رح» پــه شــان وجنګېدل او په اسلامي پوځونه کي په غزا بوخت سول.

سـلطان صـلاح الـدين ايـوبي((رح))د عربـو مځکـي تـه د عربــي ملــت د ورکېــدو پــه خــاطر پــه پــوره ميړانــه نجــات ورکــړ. حــال دا چــي هغــه پخپلــه کُـرد وو، عــرب نــه وو. هغــه نــه يــوازي اســلام، بلکــي عربــي ملــت، عربــي ژبــه او عربــي کلتــور درې ســره د يوريشــيايي صــليبي يرغلګروڅخــه وژغــورل. هغــه د حــق پــه ســاتنه ســره لــه اســلام او ملــت څخــه ســاتنه وکــړه. يــوازي اســلام وو، چــي د هغــه پــه زړه کــي را ژونــدی او پــر حرکت راغلئ وو.

همــدا ډول طــاهر«بيبــرس»، مظفــر«قطــر» او ملــک ناصـرله اسـلام څخـه ډک زړونـه درلـودل، چـي د تاتاريـانو پـه وړاندي وجنګېدل

يــوازي او يــوازي اســلام وو، چــي د الجزايــر پــه هيــواد کــي د يـوې او نيمـي پېړۍ لـه پـاره يـې د طـاغوت پـه وړانـدي مبــارزه وکــړه او عربــي بيــرغ يــې پــه رپېــدو راووســت . حــال دا چــي پــه هغــه هيــوادکي عربــي ژبــه اوکلتــور پــه بشــپړ ډول لــه رسـميته لوېـدلی او پـردی بلـل سـوي وه، پـر ليکنـه او ويلـو يـې بنـديز لګېـدلئ وو، خـو پـه هغـه ځـای کـي اسـلامي شـعور د خلګــو پــه زړونــو کــي را ژونــدی ســو د اســلام د مخــالفينو ســره

یې د لاس پنجې نرم کولو مقابله پیل کړه؛ بریالي سول او هیڅکله یې د هغوی په وړاندي خپل سرونه خم نه کړل .
څوک چي صلیب پالونکي وه سرنگون سول همدا علت وو، چي اسلام پاڅون یې په الجزایر هیواد کي رهبري کړ کوښښ وسو، چي اسلامي روحیه هلته ژوندی پاته او وپالل سي په همدې توسن عبدالحمیدبن بادیس وو، چي د اسلامي نهضت«اخوان المسلمین» ځښته یې په هغه هیواد کي کښېښووله.
دا یو واقعیت دی، چي ځیني نادان اوضعیف النفس انسانان ددې پروسې ضعیفولو له پاره لاوس هم هڅه اوهاند کوي . دا حقیقونه فرانسویان او ایټالویان ډېر ښه حس کولای سي او ښه پوهېږي تحریک یې هم ددوی لخوا طرحه او اکمالېږي .هغوی په دې یقین لري، چي یوازي اسلام دی، چي ددوی د شومو اهدافو مخه نیسي د دوی له قوته څخه نه یوازي عرب او الجزایریان دي ، بلکي ټول اسلامي امت یې مخالف دی .
اسلام وو، چي له غلامۍ څخه د خلاصون په موخه یې د پاڅون لاره خپله کړه . مهدي سوډاني چي په مصرکي یې په لمړي ځل ددې تحریک اساس دبرطانوي استعمار پر ضد پرلاره اچولی وو.د مهدي سوډاني او

عثمـان دقنـه ابلاغيـې چـي د((کرمـر)) پـه نـوم وې د اسـلامي اساسـي تحريـک لامـل سـوې همدغـه اسـلام وو، چــي پـه طـرابلس او برقـه کـي يـې د اسـتعمار پـر ضـد پاڅونونـه وکـړل او د((سنوسـي)) پـه نـوم نهضـت يـې د خـدايي نـور پـه بدرگـه د عمرمختار په رهبرۍ را منځته کړ.

همـدا آزادي بخښـونکی پـاڅون وو، چــي پـه مـراکش کــي يــې پــاڅون وکــړ هغــه وخــت، چــي فرانســويانو پــه ۱۹۳۱مـيلادي کـال د ((الظهيرالبريـري)) پـه نـوم قـانون نافـذ کـړ، پـه دې سـره يـې بربـري قبايـل د اسـلام لـه دايـرې څخـه د ليـري کولـو پـه منظـور مجبـورول او د بتـانو وعبـادت تـه يـې را بلـل، مگـر دغـه اسـلام وو، چــي ددې شـوم هـدف د مخنيــوي پــه خــاطريې همغــه مراکشــي مجاهــدين را وپاريــدل.دې شـانته ورتـه اسـلام د کفـر پـه وړانـدي دمبـارزو ښيلـي نمـونې وړانــدي کــړي، حــال داچــي هغــه وخــت، مســلمانانو پــه مبــارزوي پــاڅون لاس پــوري کــاوه ټــول غېرمســلح اوخــالي لاســي وه. اصــلاً ددوی د بريــاليتوب ســرچينه اســلحه نــه، بلکــي د اســلام پيــاوړی قــوت پــه ســادگي کي.پــه ټــولنيزه همږغـي کـي دی، چـي داکړنـه فطـرت لـه بشـره سـره د راتلونکـو پټـو اړتيـاؤ هيلـي بـه پـوره کوي،لـه اسـلامه سـرچينه اخلـي .دا

کـار انسـانان د انسـان لـه بندگيـه خلاصـوي او د عـالم او کائناتو خالق الله ﷻ وبندگۍته يې رابولي.

همـدا راز پـه دې امرکـي د اسـلام د ديـن پېـروي نغښـتې ده، پـه اوضاعوکښـي مخـي تـه راځـي پـه دې خـاطر د طـاغوت پلويـانو پـه خپـل ټـول تـوان سره پـه خپلـو لاسـو جـوړ کـړي مـادي وسـائل پرکـار واچـول، خـو د يـوه مسـلمان زړه يـې خپـل نـه کـړ، نـه يـې ترخپلـي سلطې لانـدي راووسـت کـه پـر هغـو يـې د يـادو امکانـاتو پـه مرسـته ډېـر فشـارونه وارد کـړل. پـه دې اسـاس، چـي د مسـلمانانو وجـدان لـه اسـلام څخـه ډک دی دطـاغوت لاري تـه وانـه ووښـتل مسـلمانان پـه ظـاهري بڼـه سـره څـو ځايـه لـه مـاتو سـره مـخ سـول،خو پـه روحاني ډول يې هيڅ ماته اونه کومه خستگي احساس کړه

د اسـلام د ديـن همدغـه ځـانگړني دي، چـي دښـمنان يـې پـه پرلـه پسـې ډول پـه مقابلـه کـي دي پـه دې خـاطر،چي اسـلام د دوی د اهـدافو د پلـي کېـدو مـانع گرځېـدلئ دی.د اسـتعمار او اسـتثمار دغوښـتنو لاري دروي او هغـوی تـه کـوم اهميـت نـه ورکـوي .مخـه يـې نيسـي . اسـلام د مځکـي پـر مـخ د درواغـو او مبتـذلو غوښـتنو خپـراوی نـه سـي زغمـلای. د اسـلام د ديـن ځـانگړني ددې موجـب دي،چـي داسـلام دديـن دښـمنان يـې دلـه منځـه وړنـي لـه

پاره په بېلابېلو دسيسو لاس پوري کړئ او بيلابېلې حيلې ولټوي. د ساري په ډول پياوړی او هر اړخيز اسلام يې د يوې کاواکي کلمې په توګه تعريف کړئ دی او په ډول ډول دسيسويې د فريب، چل، دوکې، تېر ايستني،او ...سره د مسلمانانو د انحراف کوښښ کړئ.

کوښښ کوي اسلام ترحملولاندي راولي، غواړي د اسلام اساسي اهداف ، شئوناتو او مفکورو ته په اساسي ډول تغير ورکړي، چې اسلام يې ددې کړنو سره په پوره ډول مخالف دی. دوی کوښښ کوي يا له هغو سره هيڅ ډول اړيکه ونه ساتي او يايې تعويض کړي.

داده د اسلام مشخصات دي، چې دښمنان يې په وړاندي خلګ را پاوروي او پر مسلمانانو د ژوند دايره تنګوي، د حق او باطل د مبارزې پيلامه هم له همدې امله ده، چې ددې ټکر اصلي علت روښانه کړي د اوسني اوضاع حالات که د اسلام له پاره جوړوونکي نه دي، خو راتلونکي به بيا همدا اسلام او د مسلمانانو د دين په واک کې وي.

هغه دا چې موږ(مسلمانان)دغسي ژوند بخښونکی نظام وړاندي کړو .دا سي ډول ديني او امر موږ بررسي کړو، پس بيا هم په دې باوري کېږو، چې ببله شکه ((راتلونکې داسلام ده)). په همدې ډول همدا دين

پــه هــر وخــت او زمــان کــې د انســانیت د خلاصون،ســاتني او پرمختګ لاره جوړوي او ستونزوته د حل لاره پیدا کوي.

داکــه ددې دیــن دښــمنان غــواړي کــې نــه غــواړي دا به کېږي. مــوږ پــه پــوره جرائت او وثاقت سره ویلای ســو، چــې مــادي ژونــد تــر یــوې مــودې پــوري هــم د اســلامه پرتــه ازاد ژونــد نســې کولای.نــه غــواړم پــردې خبــره نــوره فافشــاري وکــړم، البتــه دلتــه دیــوه مثــال پــه وړانــدې کېــدو ســره د اســلام پــر تــاریخ بسنه کوم،چې مناسب مثال به وي:

رســـول اللـــهﷺ او د هغـــه سرښـــانده ملګـــري ابـــوبکر صــدیق (رض) پــه مکــه کــې د قریشــو څخــه تــر زیــاتو تنګېــدو وروســته مــدینې منــورې تــه د هجــرت پــه توســن انتظــار کــاوه او د مالــک زوی ســراقه د قریشــو د جــایزې د ترلاســه کولــو لــه پــاره د هغــوی پــه لټــه وو کلــه چــې داســلامي دیــن دغــو لویــو شتمنیو((رســول اللــهﷺ او ابــوبکر رضــي اللــه عنــه)) تــه ور نــژدې کېــده د آس پښــې بــه یــې پــه مځکــه ننــوتلې پــه داســې حــال کــې، چــې هغــه د اللهﷻ د غضــب پــه وړانــدې ناکامــه راغــئ. نبــي کــریم ﷺ ســره یــې د اســلام د قبلېــدلو لــه پاره د بیعت مراجعه وکړه. رسول الله ﷺ هغه مخاطب کړ:

((اې سراقه!

ستامعامله به له کسری سره څه ډول وي؟

بیـا یـې سـراقه تـه دا زیـرئ ورکـړ:دکسـری د شهنشـاه وربښمین لباس به ته اغوندې.

اللـهﷻ ښـه پـوهېږي، چـې هغـه وخـت بـه د سـراقه پـه زړه او دمـاغ کـې د رسـول اللـهﷺ د ا زېـري څـه ډول عجیـب او غریـب خیـالات راګرځـول، چـې دا ډول زېـرئ ورکـول کېـدی دا سـې یـوملګري، چـې یـوازې ده تـه یـې کفایـت نـه کـاوه، خـو پـه پټـه یـې د ځـان ملګـری کـړئ وو او ټولـه ټبـر یې په تعقیب پسې وو.

رسـول اللـهﷺپرهغـه قـوت ایمـان او یقـین درلـود، چـې دی دنیـا تـه پـه رالېـږل سـوئ وو.لـه باطلـه یـې هـم خبردرلـود، چـې لـه اسـیته یـې ټـول جهـان د جهالـت پرلـور روان وو. هغـه پـوره یقـین درلـود، چـې حـق بـه د باطـل پـه وړانـدي غـالبېږي او دا امکـان نـه لـري، چـې دواړه((حـق اوباطل))څنـګ پـر څنګ یو ځای ګذاره سره وکړي.

د باطــل ریښــې داســې ورســتې او پړســېدلې دي، چــې هــیڅ ډول آبیاری‌تــازګې نســې ورکــولای ټولــه مقدســه عقیـده د انسـانیت پـه زړونـو کـې د رسـول اللـهﷺ لـه خـوا تخـم پاشـل سـوئ، چـې ترنشـو نمـا وروسـته د اسـلام درختـې سـاقه کوله او مېوه داره کېدله رسول الله ﷺ پوره باور په درلود.

مورږتر نن ورځې همدغسې اوضاع پالو، دا لاره مو د جهالت په وړاندې نيولې ده،پوره باور لرو،چې اسلام غالب دی داسې يوه اوضاع به رامنځته کيږي، چې په ښکاره به د مسلمانانو له پاره مايوسه کوونکې وي، خوحق به غالبيږي.

ورځنۍ انسانيت د موجوده مادي تمدن په لړکې ډيري اړتياوي لري.د نړۍ اوسنۍ اوضاع هم له هغو ورځو څخه کمه نه ده، لکه د نبوت لمرچې پر راختو وو. اسلام د ټولو دينونو سرلاری دين دی او پر ټولو دينونو تفوق او لوړوالی لري د اسلام د عظمت په وړاندې هيڅ يو بل دين ثبوت نسې وړاندې کولای. موږ په دې اړه هيڅ ډول شك نه لرو، بلکې باور ولرو د اسلام اوضاع، چې يوځلې د انسانيت دنيکمرغۍ له پاره خپره سوې ده. بيا به مسلطه سي، حق به پر باطل غلبه پيدا کړي نن ورځ هم د اسلام د دين مدافعين د باطل د لاري د سروالانو څخه تر وحشې او نه بخښونکو گذارونو لاندې دي . موږ وينو، چې مادي تمدن د مادې پر محکمو ستنو باندې ولاړ او پښې يې ښخې کړي دي. موږ بايد د حق په پلې کېدو د هيڅ ډول اشتباه کېدونکې ونه اوسو. د خير او شر د جګړې په لړکې هيڅ ډول ضربې نسې بېلولای، بلکې د بېلتون اصلې

کرښــه د حــق پــر قاطعانــه پريکــړه او د باطــل پــه وړانــدې د پـاڅون کولـو دی، چـې دا پخپـل اصـل کـې باطـل تـه ښـه سـزا ورکولای سي.

مـوږ د حـق د لارې مخکښـان هيڅکلـه يـوازې نـه يـو. دکائنـاتو فطـرت او زمـوږ فطـرت زموږقـوت دی همدغـه قـوت د مـادي قـوت چـې، دطبيعـت ضـد پـه پلـې کېـدو زورکـوي هيڅکلـه پـروا نـه سـاتي، کلـه چـې مـادي تمـدن د طبيعـت سـره لاس اوګرېـوان سـي. پـه هغـه وخـت کـې د طبيعـت بريـاليتوب د اللــهﷻ لــه خــوا تقديرېږي.ببلــه دې، چـــې د طبيعـــت او تمـدن تـرمنځ ټکـر دوامـداره سـې اللـهﷻ يـې ختمـوي. پـه اوسنی اوضـاع کـې، يـوې خبـرې تـه اړتيـا لـرو هغـه دا چـې مـوږ د صبر او ازمايښت لـه پـاره اړتيـا پـه مـخ کـې لـرو . غـواړو، چـې فطـرت د تمـدن لـه هتکړيـو څخـه ازاد کـړو . هغـه تـه دننـي تمـدن پـه پرتلـه لـوړوالی ورکـړو. همدغـه لامـل دی، چـې د هـر شــــي مخکـــې ددې ډول مبــــارزې اړتيــــا حـــس او ترهرڅـــه لمړيتـوب عقيـدتي نظـام تـه ورکـړو. داپرمـوږ ده، چـې د دې ديـن مخـالفين لـه بـين سـره سـم کـړو ترڅومـوږ او زمـوږ سـره اوسـېدونکې کسـان د اللـهﷻ ديـن پـه يوشـان پلـی کـړي. ترڅـو، چـې مـوږ د کائنـاتو د خـالقﷻ د دې جـوړکړې جهـان سيسـتم نـه وې پېژنـدلی، مـوږ د صـحيح ايمـان لرونکـې نـه

يو.مـوږ بايـد پـه همـدې ملحـوظ د اسـلام ددين معيارونـه اوتمـدني ژوندانـه پرمختـگ پـه پلـي کېـدلو کـي دقيـق سـو او پـه سـرته رسـولوکي داسـي انـډول وسـاتو، چـي د هريـوه ارزښـت مـو پرخپـل ځـاى مـد نظرنيـولى وي. ترڅـو اسـلحه مـو د علمـي منطـق تـابع نـه وي گرځـولې مـوږ بـه پـه دې ونتـوانېږو، چـي څـه بـه مـو سـرته رسـولي وي او څـه بـه مـو پرېښـي وي .دغـه پوهـه اوتجربـه ده، چـي مـوږ تـه اسـتعداد او صـلاحيت را بخښـي، د ښـو او بـدو تـر منځ تميـز روښـانه کـوي بايـد انسـاني ژونـد د ديـن د معيـار لـه مخـي پـه يـاد ولـرو . هغـه، چـي پـه ننـنـي تمـدن کـي مـو پرېښـي دى. هغـه ژونـد، چـي دننـنـي تمـدن پـه زده کـړو مـو اصـلي محـک هيـر کـړئ پرېـږدو او د بقـا لـه پـاره يـې د ديـن، علـم او تجربـې ازمئښـت کولـو غوښـتنه ولـرو، دغـه خبـره يـوه سـخته ازموينـه ده د صـبر او حوصـلې پـه درلودلـو مـخ پـه وړانـدي پرتـه ده، د حـق او باطـل تـرمنځ بايـد تجزيـه موجـوده وي.«اللـه ﷻ زمـوږ سـره دى، هغـه پـر خپـل امرغالب دى، خو ډېر خلگ نه پوهېږي»

والله علي ما نقول وكيل